وَرَتِّلِ الْقُرْاٰنَ تَرْتِيْلًا
خَيْرُكُمْ مَنْ تَعَلَّمَ الْقُرْاٰنَ وَعَلَّمَهُ

# دلیل القرآن

## تجوید الفرقان


لیکوال
خادم القرآن استاذ القراء حضرت
مولانا قاری عبد الواحد صابری
المعروف قاری عبد المجید صابری



مکتبة التجوید القرآن
ملک مارکیت زیارت روڈ کچلاک

بسم الله الرحمن الرحيم

وَرَتِّلِ الْقُرْآنَ تَرْتِيْلًا

خيركم من تعلم القرآن وعلمه

# دليل القرآن تجويد الفرقان

ليکوال


خادم القرآن استاذ القراء حضرت مولانا

قاري عبدالواحد صابري



الناشر

پخپله مصنف

بسم الله الرحمن الرحيم

# دکتاب پيژندګلوي

نام كتاب............. دليل القرآن تجويد الفرقان

مصنف................حضرت مولانا قاري
عبدلواحد صابري

المعروف........ قاري عبدالحميد

تعداد..................( ۱۰۰۰ ) توکه

دچاپ ځای............... لاهور

کمپوزر.................مولوي علي احمد مينګل
مدرس جامعه طيبه مرکزيه دار التجويد والقراءات

# تقریظ

الحمدلله الذي انزل الفرقان والصلوة والسلام علی رسوله المبوث للانس والجان.

**امابعد:** دعلم تجوید زده کړه دقرآن مجید د آیتونو او لاربښوونو مطابق په هر قرآن ویونکي باندي واجب ده، او همدارنگه نبي کریم علیه الصلوة والسلام په بې شمېره احادیثو کښي دعلم تجوید فضیلت بیان کړی دی، او همدارنگه ئې پر هغو کسانو باندي د وعید ذکر کړی دی، کوم چي قرآن مجید دعلم تجوید دقواعدو پر ته وائي.

دعلم تجوید پر وجوب باندي د ټولو امامانو اتفاق دی، او ددې وجوب اثبات ته زما په خیال حاجت نسته، ولي چي یوشی چي په نصوص قطعیه وو سره ثابت وي، نو کېدای سي چي بېله ضرورته به ئې پر اثبات باندي دلائل قائمول د وخت ضیاع وي.

په هر صورت...... نن صبا چي د قرآني علومو دبیا را ژوندي کولو هڅي پېل سوي دي الحمدلله علماء کرامو خپل قلمونه په کار اچولي دي، اومبلغینو خپل ژبي په کار اچولي ،او مدرسینو خپل علمي استعدادونه په کار اچولي دي،او په خانقاوو کښي ناستو بزرگانو ورته د دعاؤ لاسونه په دربار الهي کښي پورته کړي دي،او مجاهدینو بیا ددې علومو د ژوندي ساتلو بېره پخپل توره او سنگر سره کړېده.

نو لله الحمد چي مولوي قاري عبدالواحد صاحب هم په نامه د ""دلیل القرآن"" یوه رساله د علم تجوید په بعضو اجمالي مسائلو کښي تصنیف کړې ده.

دالله تعالي څخه دادعاء ده چي خدای دي دا رساله و مصنف لره اوهمدارنگه زمونږ لپاره اسم بامسمی وگرځوي، چي په ورځ دآخرت رالره دلیل سي ما دمختلفو ځایو څخه وکتل ماشاء الله خپل ویونکي و ځان ته راجلبوي او پر خپلي وینا یې را تشویقوي، الله تعالي دې نافعه و گرځوي آمین

د قرآن مجید د خادمینو دپښو خاوري

**فضل الحق حقاني**

خادم التجوید والقرآءات کوټه بلوچستان

## تقريظ

الحمد لله وكفى والصلوة والسلام على سيد الانبياء محمد المصطفى وعلى آله واصحابه البررة التقى.

امابعد : فيقول العبد المحتاج الى حبيب الرحمن العلى الحاج القاري حافظ نور الله.

اني قد طالعت هذه الرسالته المفيد المسمى بدليل القرآن تجويد الفرقان تصنيف للفاضل القاري المولوي عبد الواحد الصابري "اطال الله عمره و فيضانه"

فوجدته شياء عجيبا لم يسبق اليه احد من القراء هذه الفن بلاشک و ارتياب نافعة للقراء والطلباء ان ما رايت كتاب قبله مثله ادعوا لله ان يجعله خالصا لوجهه الكريم و ينفع به المسلمين الي يوم الدين.

و صلي الله تعالى على خير خلقه ونور عرشه محمد واله و اصحابه اجمعين.

و انا العبد العاصي المحتاج المولاه العالي.

الحاج قاري **حافظ نور الله نوري** المقيم ببلدة كوئته

تاريخ.....۱۴۳۰... ه‍ ق..جمادي الثاني....

بمطابق :۸-۶-۲۰۰۹ م.

## تقريظ للعبد العاصي المحمدي

وماأتيت من العلم الا قليلا ومن اصدق من الله قيلا

الحمد لله الذي انزل الفرقان على عبده ليكون للعالمين نذيرا و فسر بعضه ببعضه لعباده احسن تفسيرا.

وجعل في الارض القراء والمجودين يقرؤن القرآن تجويدا و تحسينا و يتلون حق تلاوته تحديرا و ترتيلا.

وصلوة وسلام على خاتم الانبياء المرسل الى الجنت والناس بشيرا و نذيرا و على آله واصحابه الذين هم خلاصة العرب العرباء و خير الخلائق بعد الانبياء.

اما بعد : لقد رايت و طالعت هذا الكتاب للخادم القرآن القاري المولوي عبد الواحد الصابري فوجدته عجيب الترتيب وغريب النظم و عديم المثل بلسان الافغاني القندهاري فقد خدم هذا العبد للكلام الله الفرقان خصوصا في هذه الزمانة المملئت من الفتن والعصيان ادخله الله الي جنان

اللهم انفع بهذا الكتاب الي القراء المدرسين و جميع المؤمنين وا جعله بجم في فن التجويد رجما للشياطين، وصلي الله تعالى على خير خلقه محمد سيد المرسلين و رحمتا للعالمين والحمد لله رب العلمين آمين ثم آمين.

العبد العاصي رافع اليدين الى رحمت خالق الثقلين ورب المشرقين القاري **دين محمد محمدي** الافغاني ثم الروزگاني ثم الچهارچينوي رحم الله عليه و علي ابويه.

# تقریظ

الحمد لله وکفی والصلوة والسلام علی سید الانبیاء محمد المصطفی وعلی آله و اصحابه البررة التقی.

امابعد : فیقول العبد احقر قاري عبد الرحمن مدني اني قدطالعت هذه الرسالته المفید المسمی بدلیل القرآن تجوید الفرقان تصنیف للفاضل القاري المولوي عبدالواحد الصابري (اطال الله عمره و فیضانه).

فوجدته شیئا عجیبا لم یسبق الیه احد من القراء هذه الفن بلاشک و ارتیاب نافعة للقراء والطلباء ان ما رایت کتاب قبله مثله ادعوا لله ان یجعله خالصا لوجهه الکریم و ینفع به المسلمین الی یوم الدین

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه و نور عرشه محمدو آله و اصحابه اجمعین

وانا العبد العاصي المحتاج المولاه العالي

**احقر قاري عبد الرحمن مدني**

المقیم ببلدة کوئته.

۲۰۰۹-۷-۹

# تقریظ

الحمد لله رب العلمین والصلوۃ والسلام علی قائد الغرا المحجلین وعلی جمیع الاصحابہ و من تبعة الی یوم الدین.

امابعد : فاني قد طالعت الرسالة المسماة بدلیل القرآن في تجوید الفرقان فوجدتها نادرة وحیدة في بیان القواعد بالتفصیل والجمع في الاشعار.

فلله در المؤلف مجودا

واسئل الله العظیم ان ینفع بها القراء المجودین.

فقط کتبه حقیر الوری ابوالحکمت حاجي **قاري عبدالله شاد**

حاجي محمدنبي مسجد نورزئي کالوني پشتون باغ کوئته

۲۰۰۹-۷-۷

# فصل

دقرآن شريف د شروع كولو څخه مخ كښې درې صورته دي.

**اول :** ابتداء د سورت، ابتداء دتلاوت.

**دوهم:** ابتداء دتلاوت، مابين دسورت.

**درې يم:** ابتداء دسورت، مابين د تلاوت.

ددې درې صورتو وضاحت داسي دی

**د اول صورت وضاحت :** د اول صورت وضاحت دادی چي شروع وكي د"اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۲﴾ څخه هم ابتداء د سورت ده هم ابتداء د تلاوت ده.

**د دوهم صورت وضاحت :** د دوهم صورت وضاحت دادی چي شروع وكي د مابين د سورت څخه لكه "اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ ﴿۶﴾ " دې ته ابتداء د تلاوت مابين د سورت وايي.

**د درې يم صورت وضاحت :** د درې يم صورت وضاحت دادی چي شروع وكي په تلاوت كولو بل سورت په منځ كښې شروع سي مثال لكه شروع چي وكي " د وَالضُّحٰي" څخه مخ ته "اَلَمْ نَشْرَحْ" سورت شروع سي دې ته ابتداء دسورت مابين د تلاوت وايي.

اوس محل داعوذ بالله الخ حكم د اعوذ بالله الخ الفاظ د اعوذ بالله الخ بيانېږي.

**محل:** د اعوذ بالله عام دی، كه ابتداء د تلاوت وي او كه ابتداء دسورت وي، عام والي ددې آيت څخه معلومېږي، لكه الله ﷻ چي فرمايي

" فَاِذَا قَرَاْتَ الْقُرْاٰنَ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ ۝ (سورة النحل ع ۲۳).

**ترجمه :** هو کله چي ته د قرآن ويلو اراده وکړې نو د شيطان مردود د شره څخه د الله په نامه پناه غواړه.

# فصل

په حکم د "اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ" کښې اختلاف دی، څوک وايي چي اعوذ بالله واجب ده، څوک وايي چي اعوذ بالله مستحب ده، څوک وايي چي اعوذ بالله سنت ده.

خو بعضي علماء د اول قول قائلين دي يعني د وجوب، او اکثره د دويم قول لکه څرنګه چي محرر فن علامه جزري رحمه الله په طيبة النشر کښي فرمايي " وَاسْتَحَبَّ تَعَوُّذُ وَ قَالَ بَعْضُهُمْ يَجِبُ" بعضي علماؤ ويلي دي چه "اعوذ بالله" په وخت کي د شروع کولو د تلاوت سنت ده.

**الفاظ د اعوذ بالله اولس (۱۷) قسمه دي**

(۱) اعوذ بالله من الشيطن الرجيم.

(۲) اعوذ بالله العظيم من الشيطن الرجيم.

(۳) اعوذ بالله العظيم السميع العليم من الشيطن الرجيم ان الله هو السميع العليم.

(۴) اعوذ بالله من الشيطن الرجيم ان الله هو السميع العليم.

(۵) اعوذ بالله المعين من الشيطن اللعين الي يوم الدين.

(۶) اعوذ بالله العظيم و بوجهه الكريم و سلطانه القديم من الشيطن الرجيم.

(۷) اعوذ بالله العظيم من الشيطن الرجيم ان الله غفور الرحيم.

(۸) اعوذ بالله العظيم من الشيطن الرجيم ان الله هو السيمع العليم.

(۹) اعوذ بالله من الشيطن الرجيم واستفتح بسم الله و هو خير الناصرين.

(۱۰)اعوذ بالله المستعان من الشيطن و الكفر والطغيان و هو المنعم والمستعان.

(۱۱)استعذبالله من الشيطن الرجيم ان الله هو السيمع العليم.

(۱۲) اعوذ بعفو الله العظيم من عذاب اليم من همزات الشيطن انه هو السميع العليم.

(۱۳) اعوذ بالله الواجد الماجد من كل عدو حاسد ومن كل شيطن مارد ان الله هو السميع العليم.

(۱۴) نستعذ بالله من الشيطن الرجيم.

(۱۵) استعيذ باالصمد الملک المنبت المعين وسلطانک القديم و اعوذ بک من الشيطن الكافر الكفير المرتد اللعين الرجيم.

(۱٦) اعوذ بالصمد الملک المنبت المعين من الشيطن الرجيم الكافر المدبر المرتد الرجيم اللعين.

(۱۷) اعوذ باالله و نستفتح بفضل الله من الشيطن الرجيم الا هو القادر القاهر القوي المتين واستفتح بفضلک العظيم و نستجيره بلطفه من الشيطن الرجيم.

په اولس اقسامو د استعاذې کښې کومه وجه مختاره، غوره او خوښه چې د ټولو قاريانو ده هغه داده چې "" اَعُوْذُبِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ" لکه څنګه چې په سورة نحل کې هم داغسې راغلي دي "نشر" ويلي دي، استاذ ابو طاهر ابن سوار اوبو العزالقلانسي او نورو استاذانو ويلي دي چې په تحقيق سره هغه لفظ چې پر هغه د امت اجماع ده هغه دا لفظ دی چې " اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ".

او حافظ ابو عمر والداني ويلي دي چې دغه لفظ ښه پوهان مستعمله وي نه ناپوهان، او دا لفظ د ډېرو د فقهي او مذهب استاذانو هم خوښ کړی دی، لکه حضرت امام شافعي رحمه الله او داسي نورو استاذانو چي هم خوښ کړی دی.

او د علیه الصلاة والسلام مبارک څخه راغلي دي، چي بخاري او مسلم يې روايت کوي، چي ښکنځل وکړه دوو کسانو په حضور کي د علیه الصلاة والسلام مبارک، او صحابه کرام وائي چي موږ هم ناست وو، هغه دوو کسانو کي يوه بل ته پوچ ويل ډېر په غضب وو او مخ يې سور سوی وو.

نو علیه الصلاة والسلام مبارک وويل زما يوه داسي کلمه زده ده که چيري دی يې ووايې نو دغه خوشک والی به يې ولاړ سي که چيري دا کلمه ووايي چي " اَعُوذُبِاللهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْم " دا حديث مبارک بخاري په کتاب الادب کي راوړي، هم دارنګه امام احمد رحمه الله هم راوړی دی.

**شعر**

داعوذ زده کړه حقيقت
ته پخوا تر تلاوت

قول کاندي په شان شان
په اعوذ کښي قاريان

قاريان که اختلاف جانه
اعوذ لولي په څو شانه

تو له دادي واوره مانه
اختلافي اعوذ څوانه

اولس قسم زما ياره
له کتابونه له استاذه

تر همو و ده دا غوره

اعوذ داده معتبره

اعوذ بالله من الشيطن الرجيم

كړه ياد دا په ښه تعليم

هم عاصمي اعوذ داده

له دي اعوذ ما وراء ده.

دوهم اعوذ بالله العظيم

من الشيطن الرجيم

دريم اعوذ بالله من الشيطن الرجيم

ان الله هو السميع العليم.

څلورم اعوذ بالله العظيم

من الشيطان الرجيم ان الله هو السيمع العليم

پنځم اعوذ بالله المعين من الشيطن

اللعين الي يوم الدين

شپږم اعوذ بالله العظيم و بوجهه الكريم

وسلطانه القد يم من الشيطن الرجيم

اوم اعوذ بالله العظيم من الشيطن الرجيم

ان الله غفور رحيم

اتم اعوذ بالله العظيم من الشيطن

الرجيم ان الله هو السميع العليم

نهم اعوذ بالله من الشيطن الرجيم

واستفتح بسم الله وهو خير الناصرين

لسم اعوذ بالله المستعان من الشیطن
والکفر والطغیان و هو المنعم والمستعان
یولسم استعیذ بالله من الشیطن الرجیم
ان الله هو السمیع العلیم
دولسم اعوذ بعفوا الله العظیم من عذاب
الیم من همزات الشیطن انه هو السمیع العلیم
دیارلسم اعوذ بالله الواجد الماجد من کل عدو و حاسد
ومن کل شیطن مارد ان الله هو السمیع العلیم
څورلس نستعیذ بالله من الشیطن الرجیم
پنځلسم استعیذ بالصمد الملک
المنبت المعین و سلطانک
القدیم و اعوذ بک من الشیطن الرجیم
الکافر الکفیر المرتد اللعین الرجیم
شپاړسم اعوذ باالصمد الملک
المنبت المعین من الشیطن الرجیم
الکافر المدبر المرتد الرجیم اللعین
اولسم اعوذ بالله ونستفتح بفضل الله من الشیطن
الرجیم الا هو القادر القاهر القوي المتین
واستفتح بفضلک العظیم
و نستجیره بلطفه من الشیطن الرجیم
اوولس قسمونه مي پوره کړه
پر قاریانو مي کره کړه
ته بې هم کړه په حساب
چي لائق شي د ثواب آمین

# فصل

اوس بيان د "بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ" شروع كېږي

محل د بسم الله الخ الفاظ د بسم الله الخ حكم د بسم الله الخ.

**محل** : د"بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ" خاص دی چي د سورت سره به وي يعني د سورت په سر كې به يې وايي.

**الفاظ** : د بسم الله دغه الفاظ دي "بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ".

**حكم** : د بسم الله الخ په ابتداء كښي د سورة واجب ده دا هم مشهوره قول دی، او چاويلي دي چي سنت مؤكده ده، او په مابين د سورتونو كښي چي سيپاره يا ربع يا يو آيت شروع كوي، بيا مستحب ده، ليكن په ماسوا كښي د سورة برات، اما په سورة برات كښي اختلاف دی، نو ابن حجر رحمه الله فرمايي چي بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ حرامه ده، په ابتداء كښي د سورة برائت او مكروه ده په مابين كښي د سورة براءت.

او علامه رملي رحمه الله وائي چي ""بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ"" مكروه ده په ابتداء كښي د سورة براءت او مستحب ده په مابين كښي د سورة توبه او دا قول اعتمادي دی.

حكمت د پاته كېدلو د "بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ" په اول د سورة توبه كښي دادی چي ""بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ"" د پاره د امان ده او سورة براءة كښي امان نسته ځكه چي نزول دده په تورات اوقتل دكفارو او بېزاری د رب جل جلاله او

رسول ﷺ ددوئ څخه سوی دی.

بله وجه ده پاته کېدو د "بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ" په اول د سورة توبه کښي داده پر سورت براءت باندي د بسم الله نه ویلو اصل وجه داده چي صحابه کرامو ﷺ په قرآن مجید کي پر دې سورت باندي بسم الله نه وه لیکلې او نه پر دې سورت باندي نازله سوې وه، یاد نه ویلو وجه داده چي ددې سورت مضمون د سورة انفال دسورت سره سمون خوري نو ګویا حکمًا دواړه سورته سره یو سوه، علامه شاطبي ﷫ په خپل کتاب شاطبیه کي د بسم الله الخ د نه ویلوي حکمت دا بیان کړی دی، په دې کي آیت د سیف او قتال دی "فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ" یعني د الله تعالی د غضب اظهار دی، او بسم الله رحمت دی ددې وجهي رحمت او عذاب غضب جمع کول مناسب نه دی، او هم داغه مضمون علامه شاطبي ﷫ په دا لاندي شعر کي بیان کړی دی.

وَمَهْمَا تَصِلْهَا اَوْ بَدَاءتَ بَرَاءةَ لِتَنْزِيلِهَا بِالسَّيْفِ لَسْتَ مُبَسْمِلاً

**ترجمه:** او کله چي ته وصل کې سوره توبه د سورة انفال سره یا ذبل سورة سره یا ابتداء وکړې د سورت توبې څخه نو په سورة براءت کښي د سیف او قتال په وجه سره بسم الله نه ویل کېږي.

**تنبیه:** په مابین کي د سورت انفال او سورت توبې دري وجهي روا دي (۱) وقف (۲) وصل (۳) سکته

**اوله وجه:** د وقف که چیري قاري د سورة انفال پر آخر باندي وقف وکی عَلِيمٌ ۝ بَرَاءَةٌ مِّنَ اللّٰهِ الخ" نو د سورة توبه په اول کي به یوازي " اَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيمِ " وائي، ځکه چي بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ ویل د سورة توبه په اول کي حرام او یا مکروه ده، لکه څرنګه چي مخ ته ذکره سوه.

**دوهمه وجه وصل ده :** او كه چيري سورة انفال اوسورة توبه سره وصل كي لكه " عَلِيْمٌ ° بَرَاءَةٌ مِّنَ اللهِ "" نو به بيا نه اعوذ بالله وايي او نه به بسم الله وايي لكه دواړه چي يو سورة وي.

**دريمه وجه د سكتي ده:** كه چيري قاري سكته وكي نو بيا به يو الف يعني دوه حركته قدر سكته كوي سكته داسي ده چي ساه بند كي او دوه حركته قدر يعني لكه يوه گوته خلاصه وي او بيايي بنده وي، او يا يو دوه حساب كوي، دونه ودريږي بيا دواړه سورته سره وصل كي لكه يو سورة چي وي"عليم سكته براءة من الله"

**شعر**

تمام واوره قيل وقال

د بسم الله زده كړه احوال

تسميه ايات ده له قران

په سورة نمل كي اي ځوانه

راوړي دي اهل قانون

د بسم الله لوست مسنون

وي په اول د هر سورت

د بسم الله دي لوست سنت

او په سورت كښي د براءت

له بسم الله كړه احتياط

تسميه آيات د مغفرت دى

د غفران د امان درحمت دى

دا سورت د كافرانو

په باب دی نازل یارانو

له بعض قراء شته دي روایت

که په آخر ددې سورة

که بسم الله لولې روا ده

که یه نه لولي اولي ده

# فصل

اوس بیان د وجوهاتو شروع کېږي

د اول صورت د وجوهاتو بیان کښي دی یعني په ابتداء د تلاوت کښي او ابتداء سورت کي څلور صورتونه جوړېږي.

(۱)فصل کل (۲) وصل کل (۳) فصل اول وصل ثاني (۴)وصل اول فصل ثاني.

**فصل کل** : دې ته وایي چي وقف وکړي په" اَعُوذُبِاللهِ مِنَ الشَّیْطٰنِ الرَّجِیْمِ " باندي او پر "بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ " باندي هم وقف وکړي، همدارازپر "اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ " باندي، یعني درې سره په جلا جلا ساه باندي ووایي.

**وصل کل** : دې ته وایي چي اَعُوذُبِاللهِ مِنَ الشَّیْطٰنِ الرَّجِیْمِ او بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ او "اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ " یعني درې سره په یوه ساه باندي ووایي.

**فصل اول وصل ثاني** : دې ته وایي چي "اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّیْطٰنِ الرَّجِیْمِ په یوه ساه باندي ووایي او پر "اعوذبالله" باندي وقف وکړي او بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ

الرَّحِيْمِ او اَلْحَمْدُلِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ بیا په بل ساه سره ووايي.

**وصل اول فصل ثاني**: دې ته وايي چې " اَعُوْذُبِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الـرَّجِيْم " او "بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ " په یوه ساه سره ووايي بیا وقف وکړي، او " اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ "په جلا ساه سره ووايي.

دوهم صورت دادی چي ابتداء د تلاوت او مابين د سورت څخه شروع کړي، دلته د "بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ " ويل اختياري دي.

که "بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ " نه وايي يوازي " اَعُوْذُبِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الـرَّجِيْم " ووايي دوه صورته دي (۱) اول فصل (۲)دوهم وصل دواړه جائز دي.

**فصل**: لکه " اَعُوْذُبِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْم" باندي وقف وکړه بیا "اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ" شروع کړي په جلا ساه سره يې ووايي.

**وصل**: لکه اَعُوْذُبِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْم، مٰلِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ ۝ دواړه په یوه ساه سره ووايي.

ليکن که چیري د آيت په شروع کي کلمه د "اللّٰه" یا د"اللّٰه" د صفاتو وي لکه" اَللّٰهُ نُوْرُ السَّمٰوٰتِ يا اَللّٰهُ يَصْطَفِىْ يا اَلرَّحْمٰنِ عَلَى الْعَرْشِ اسْتَوٰى نو اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرجيم د هغه کلمي سره يې وصل صحيح نه دی.

او که بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ووايې بیا څلور صورتونه جوړيږي، دوه جائز دي، دوه غير جائز دي.

جائز صورتونه يې دادي (۱) فصل کل (۲) وصل اول فصل ثاني دي.

**فصل کل** دې ته وائي لکه" اَعُوذُبِاللهِ مِنَ الشَّیْطٰنِ الرَّجِیْم " باندي چي وقف وکړي او "بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ " باندي وقف وکړي او "ٱهْدِنَا ٱلصِّرَٰطَ ٱلْمُسْتَقِيمَ " هم په جلا ساه ووايي، یعني ټوله په جلا جلا ساه سره ووايي.

**وصل اول فصل ثاني** : دې ته وايې چي " اَعُوذُبِاللهِ مِنَ الشَّیْطٰنِ الرَّجِیْم " او"بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ "په یوه ساه سره ووائي ،او سورت د آیت په جلا ساه سره ووايي لکه "ٱهْدِنَا ٱلصِّرَٰطَ ٱلْمُسْتَقِيمَ ۝.

**غیر جائز صورتونه یې دادي** : وصل کل، فصل اول وصل ثاني.

**وصل کل** : دې ته وايي چي " اَعُوذُبِاللهِ مِنَ الشَّیْطٰنِ الرَّجِیْم " او "بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ " او ""ٱهْدِنَا ٱلصِّرَٰطَ ٱلْمُسْتَقِيمَ " ټوله په یوه ساه سره ووايي.

**فصل اول وصل ثاني** : دې ته وايي چي " اَعُوذُبِاللهِ مِنَ الشَّیْطٰنِ الرَّجِیْم " په جلا جلا ساه سره ووایي.

وصل ثاني دې ته وايي چي "بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ " او"ٱهْدِنَا ٱلصِّرَٰطَ ٱلْمُسْتَقِيمَ "په یوه ساه سره ووايي.

دریم صورت دادی چي ابتداء د سورت او مابین د تلاوت دې ته وايي چي شروع وکي د تلاوت د سورت د سره څخه یا د سورت د منځه څخه په تلاوت کولو کولو کښي بل سورت شروع سي، ماسوا د سورت براءت څخه لکه شروع چي د "وَالضُّحٰی" څخه وکړي مخته یې " اَلَمْ نَشْرَحْ" شروع سي.

په دې کښي څلور وجهي جوړېږي په هغو کي درې وجهي جائز دي یو

وجه غیر جائز ده.

هغه جائز وجهي دادي (۱) فصل کل (۲) وصل کل (۳) فصل اول وصل ثاني.

**فصل کل** دې ته وايي مثلا "فَحَدِّثْ" باندي وقف وکړي او پر" بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ باندي وقف وکړي "اَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ صَدْرَكَ" په جلا ساه ووايي.

**وصل کل دې ته وايي**: چي د هر سورت پای او "بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ او بل سورت چي شروع کېږي، د هغه سر سره يوځای کړي، مثال لکه"لَكُمْ دِيْنُكُمْ وَلِيَ دِيْنِ" بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ "اِذَاجَاءَ نَصْرُ اللّٰهِ" ټوله په يوه ساه سره ووايي.

**فصل اول دې ته وايي**: " وَاِلٰى رَبِّكَ فَارْغَبْ" باندي وقف وکړي.

**وصل ثاني دې ته وايي**: بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ وَالتِّيْنِ وَالزَّيْتُوْنِ" په يوه ساه سره ووايي.

**وصل کل**: دې ته وايي چي دهر سورت پای او "بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ " او بل سورت چي شروع کېږي، د هغه سر سره يوځای کړي ماسوی د سورت براءت څخه مثال " لَكُمْ دِيْنُكُمْ وَلِيَ دِيْنِ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ اِذَاجَاءَ نَصْرُ اللّٰهِ" ټوله په يوه ساه سره ووايي.

**غير جائز وجه داده**: وصل اول فصل ثاني.

وصل اول دې ته وايي چي د سورت پای او "بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ"سره يوځای کړي مثال"اِذَا حَسَدَ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ " بيا وقف باندي وکړي،

دلته دا توهم سامع ته پيدا کېږي، چي بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ د پاره د اول سورت وويل سوه، او که د دوهم سورت د پاره ووېل سوه، او حال دادی چي بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ ويل په اتفاق سره محل شروع د سورت ده او د سورت پر ختمېد د پاره بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ويل د هيڅ چا قول نه دی.

**فصل ثاني دې ته وايي** : سورت په جلا ساه شروع کړي مثال "قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ النَّاسِ" والله اعلم.

# فصل

د وقف لغوي معنی "کَفّ" يعني درېدل

د وقف اصطلاحي معنی "قَطْعُ الصَّوْتِ مَعَ النَّفسِ وَاِسکَانُ الْمُتَحَرِّكَ اِنْ كَانَ مستحركا"

ترجمه يعني ساه او آواز دواړه قطع کول او ماتول، او صرف موقوف عليه که چيري دمخکښي څخه ساکن نه وي نو هغه ساکن کول.

**شعر**

وقف وايي درېدو ته
هم درې رنګه معطلېدو ته

وقف قطع پرېکېده دي
ساه وکښه ودرېده دي

وقف نفس و حرکت کړه
معطل شه لږ کي زاحت کړه

اوس محل د وقف بوي
چه ئي زده کړې په دين لوی

# فصل

وقف اولاً څلور قسمه دی.

اول وقف اختياري، دوهم انتظاري، دريم وقف اختباري، څلورم وقف اضطراري.

(۱) كه چيري په خپل مرضي د لفظ او معنوي تعلق رعايت كولو سره وقف وكړ دې ته اختياري وايي

(۲) د ټولو يا د بعضي قرآءتونو د جمع الجمع و قفي په صورت كي د ويلو او اختلاف پوره كولو په غرض سره چي وقف وكړ دې ته انتظاري وايي.

(۳) كه چيري استاذ د شاگرد د پوه كولو په غرض په مينځ كي په يو كلمه باندي امتحاناً وقف وكي كه څه هغه وقف بالاشمام و ياوقف بالروم يا وقف بالحذف يا وقف بالاسكان دې ته وقف اختباري وايي.

(۴) كه چيري د تږخي يا د ساه د تنگى يا د هېرېدلو يا د ساه د كموالي په وجه وقف وكي دې ته وقف اضطراري وايي.

# فصل

د معنى په لحاظ د وقف پنځه قسمه دي، (۱) وقف تام (۲) وقف كافي (۳) وقف حسن (۴) وقف قبيح (۵) وقف اقبح.

دوقف اختياري دري قسمه دي تام، كافي، حسن.

د وقف اضطراري دوه قسمه دي قبيح اقبح.

(۱) وقف تام دې ته وايي چي پر كلمه باندي وقف وكي كه د هغې د مابعد

سره يو قسم تعلق نه وي نه لفظي نه معنوي.

مثال: نَسْتَعِينُ ۝ وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ ۝

(۲) **وقف كافي**: دې ته وايي چي په كومه كلمه باندي وقف وكي چي د هغې د مابعد سره معنوي تعلق وي مثال: أَم لَمْ تُنذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ چي وقف وكې بيا ابتداء بقوله خَتَمَ ٱللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ "".

او وقف تام او وقف كافي د دواړو حكم دادى چي ذ مابعد څخه شروع د قراءت وكه د ماقبل څخه د اعادې ضرورت نسته.

(۳) وقف حسن دې ته وايي چي په كومه كلمه باندي وقف وكې چي د هغې د مابعد سره تعلق لفظي وي ددې حكم دادى كه په آيت باندي وقف وكې د مابعد څخه شروع د قرآءت وكه كه په آيت باندي وقف نه وكې، د ماقبل څخه اعاده وكه مثال " ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ نو وقف پر ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ باندي وكې نو شروع د "رب العلمين" څخه نه كوي بيرته به شروع د ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ څخه كوې، او دې ته وقف حسن وايي.

او بل وقف حسن دې ته وايي چي پر هر آيت باندي وقف وكې، لكه څرنگه چي بي بي عائشه رضي الله تعالي عنها د نبي كريم ﷺ څخه روايت كوي، چي عليه الصلوة والسلام به تلاوت داسي كاوى" ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ۝ ثم قف"ملك يوم الدين"ثم قف" دا وقف حسن دى.

(۴) وقف قبيح دې ته وايي چي په كومه كلمه باندي وقف وكې د هغې د مابعد سره لفظي اومعنوي تعلق وي، ددې حكم دادى چي دماقبل څخه يې

اعاده ضروري ده، مثال چي پر "مَالِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ" كي صرف پر "مٰلِكِ" وقف وكي يا په "اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ" كي صرف په "اَلحَمدُ" باندي وقف وكي د "يَوْمِ الدِّيْنِ" څخه شروع مه كوه، د "مَالِكِ" څخه شروع وكه د "لِلّٰهِ" څخه شروع مه كوه، د "اَلْحَمْدُ" څخه شروع وكه.

(۵) وقف اقبح دې ته وايي چي دا يو داسي نامناسبه وقف دی دده په كولو سره د غلطی او فاسدي معني توهم كيږي مثال د سورة آل عمران په شپږمه ركوع كي "وَمَامِنْ اِلٰهٍ" باندي چي وقف وكړ د "اِلاَّ الله" سره وصل نه وكي، ددې څخه خو د يو فاسدي عقيدې توهم كيږي، قاري ته په كار ده چي دداسي ځايو څخه پرهيز وكي، داسي ځايونه وقف ونه كي. والله اعلم

احقر خادم القرآن عبد الواحد صابري عفي عنه.

# فصل

وقف په لحاظ د موقوف عليه پر څلور قسمه دی

(۱) وقف بالاسكان (۲) وقف بالروم (۳) وقف بالاشمام (۴) وقف بالابدال.

(۱) وقف بالاسكان د وقف لغوي او اصطلاحي معنى مخ كي تېر سوه، اسكان په لغت كي معنى ده ارامول او حرف بېله حركته كول، په اصطلاح كي د كلمه غيرموصولې اخير كه چيري د وقف كولو څخه مخكي ساكن وي، نو د وقف دقاعدې مطابق ساه او آواز دواړه پرېكول او قطع كول دا وقف بالاسكان دی.

او كه چيري پر اخير حرف باندي يو زور وي يا ضمه او كسره عارضي وي يا تائي مدوره كوم چي په حالت كي د وقف په هاء سره بدلېږي، نو هلته وقف په اسكان سره كيږي.

په مذکوره صورتونو کي د وقف بالاسکان مطلب دادی چي د کلمه غير موصوله اخير حرف متحرک ساکن کړل سي يا تاء مدوره په هاء ساکنه سره بدله کړل سي آواز او ساه دواړه قطعه سي.

نو دې ته وقف بالاسکان ويل کېږي، په وقفونو کي اصل او زيات "معمول به" وقف بالاسکان دی لکه "يَعْلَمُونَ" لَآ داده وقف بالاسکان مثال دی، چي نون ساکن سي، په وجه د وقف " عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ" دا هم د وقف بالاسکان مثال دی، چي ميم ساکن سي د وجهي د وقف د دواړو اصل بالنقل دادی "يَعْلَمُونَ ○ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ" لَآ الرَّحْمَةَ دا مثال د هغه وقف دی، چي تاء مدوره په هاء سره بدلېږي، دې ته وقف بالابدال ويل کېږي، اصل يې الرَّحْمَةُ.

او که اخير حرف مکسوره يعني زير والا حرف وي يعني تر حرف لاندي زېر وي او اصلي وي يا د زيرونو تنوين وي، يعني دوه زيرونه وي نو هلته وقف بالاسکان او وقف بالروم دواړه جائز دي.

وقف بالاسکان دې ته وايې چي اخير حرف ساکن کړي.

وقف بالروم دې ته وايي چي د حرکت درې يمه حصه ووايي، مثال "مٰلِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ ○ مِنْ فُطُوْرٍ.

نو په اول مثال کښې ساکن کړه را په دويم مثال کښې ساکنه کړه دې ته وقف بالاسکان ويل کېږي.

لږ حرکت د کسرې په دواړو کي ښکاره کړه، مه يې ساکنه وه مثال: لکه" مٰلِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ ○ مِنْ فُطُوْرٍ." دې ته وقف بالروم ويل کېږي (روم په زېر او پېښ په دواړو کي راتلای سي).

او که په اخير حرف باندي پېښ وي، يعني يو پيښ وي اصلي يا د پېښ

تنوين وي، يعني دوه پېښونه وي نو هلته وقف بالاسكان وقف بالروم او وقف بالاشمام درې سره جائز دي.

مثال نَسْتَعِيْنُ ○ دا ديوه پيښ مثال دی.

حَكِيْمٌ ○ داده دوپيښو مثال دی

اوكه چيري پر اخير حرف باندي د زورو دوه تنوينه وي يعني دوه زورنو وي هغه تنوين په الف سره بدليږي.

مثال: نِدَآءًا ○، حَكِيْمًا ○، نِسَآءًا ○، بَصِيْرًا ○، هُدًا ○.

اصلي ددغو مثالو دادی " نِدَآءً ○ حَكِيْمًا ○، بَصِيْرًا ○، هُدًى.

(۲) **وقف بالروم**: د روم لغوي معنی د غوښتل يا تلاش كول يا طلب كول او د تجويد په اصطلاح كي روم ويل كيږي، چي د زير يا پيبش دريمه حصه داسي په نرم آواز سره اداكيږي چي نژدې ناست او په غور سره اورېدونكی د تلاوت كونكي آواز معلوم كړي.

كه چيري داسي حالت په وقف كي وي، نو هغه ته وقف بالروم ويل كيږي، مثال "تُكَذِّبَانِ ○، بِسُلْطٰنٍ ○، وَالرَّيْحَانُ ○، وَ رُمَّانٌ.

اوكه چيري د حركت دوې دريمي حصي ادا كړل سي نو هغه ته وقف بالروم او اختلاس ويل كيږي.

**اختلاس**: دغه ته چي د زير او پيښ دوې حصې ووايي يوه پريږدي.

(۳) وقف بالاشمام: د اشمام لغوي معنی بويول دي او په اصطلاح كي د تجويد د هغه درې قسمه دي.

اول قسمه حرف مضموم پيښ والا كه پر هغه باندي دپيښ حركت وي او كه تنوين وي د ساكن كولو وروسته د هغه وضمې ته د اشاره كولو دپاره فورا

## شعر

راشه وکړه سر انجام
د سکون روم ابدال اشمام
پر موقوف عليه چي دريږي
وقف کړي تر نه تيريږي
پر موقوف عليه جانه
ضمه وه مشي پريشانه
اشمام کړه که دهوس دي
که يه نه کړې سکون بس دی
که اشمام کړې ته ضم شفت کړه
پس له سکونه اشارت کړه
په ضم شفت ضمه ادا کړه
بې له صوته قاري اداکړه
هم سره له فرجي دله
دشفت کړه فرجه حاصله
لکه په مثل دمُبِنُ وي
يا په رنګ د نستعِنُ وي
بل حالث د روم دادی
له اشمامه روم جلا دی
دموقوف عليه وروره
ثلث حرکت ادا کړه ګوره
په خفي آواز اي جانه
روند اشمام نه ويني ساز

اشمام خاص دی په ضمه کښي
نه وي په فتحه نه په کسره کښي
او روم په کسره په ضمه کښي
جائز دی په دوو سره کښي
لکه رَحِیْمٍ وي یا خَبِیْرٍ
که قَالُوْنٌ وي یا مُنِیْرٍ
هم چي مفتوح وي مشدد
که پر کړي روم نوي هیڅ بد
بلکي بعضي واي ضرور دی
ترهمه روم منظور دی
لکه هُنَّ وي یا ئِبْ
روم جائز له دې سبب
هم په کمال شي مد ادا
هم تسهیل کاندي پیدا
دریم حال ئي دسکون دی
بهتر داحالت د وګون دی
چي سکون کړي هلته دریږه
بې اشارت و سهیږه
وزیر وپیښ ته اشارت
مکره ته ده حرکت
موقوف علیه کره ادا ته
کره دري الف مد پیدا ته

په ضمه فتحه کسره کښې
سکون بهتر په ټول سره کې
تر روم اشمام سکون بهتر دی
سکون تخفيف که دې باور دی
بل هم زده کړه نيک فرجام
چې به مد کړې سره لروم اشمام
طول، توسط قصر اشمام دی
حکم دسکون لرې تمام دی
په سکون اشمام کښې طول بهتر دی
درې الف مدنه زيات تر دې
او روم لرې حکم د وصل
دواړه وګنه په وصل
په روم کښې دی قصر بهتر
دی روم له وصله برابر
حال داشمام روم سکون
پوره شوه په جګر خون

# فصل

## وقف باعتبار الرموز

(٥) دا ګول آية د وقف تام علامه ده پر دې باندې درېدل مستحب دي که په خيال سره د آدائې د سنت وو.

(٥) دا علامه د آية مختلف فيه ده په دې وجه که چيرې دا آية و بولې

نو وقف کېږي، د امام عاصم رحمه الله صاحب په نېز دلته آیت نسته نه ددې آیت
اصلیت سته د قراء سبعه د آیت د اختلاف سره تعلق نسته.

(م) دا د وقف لازم علامه ده پر دې باندي وقف کول لازم دی، د وصل کولو
څخه معنی خرابېږي.

(ط) دا د وقف مطلق علامه ده پر دې وقف کول ضروري دی، په حال کي د
ضرورت چي ضرورت دي پیدا سي بس وقف باندي وکه، بېله ضرورته وقف
کول د وخت ضائع کېدل دي.

(ج) دا د وقف جائز علامه ده پر دې باندي وقف کول مستحسن دی دا
مطلب نه دی چي جیم ووینې بس وقف کوه داسي نه دی بلکه په حال کي د
ضرورت پر جیم وقف کول مستحسن دی تر نورو ځایو.

(ز) دا د وقف مجوز علامه ده پر دې د وقف کولو اجازت دی، که دلته د
وقف قوي علامه نه وه لکه "ج" وغیره بس په حال کي د ضرورت پر دغه "زاء"
وقف وکه که څه هم د وقف ضعیف علامه ده.

(ص) دا د وقف مرخص علامه ده، پر دې باندي په وخت کي د ضرورت د
وقف کولو اجازت دی، دا علامه هم د وقف ضعیف ده.

(ق) دا د وقف "قیل علیه" علامه ده، ددې مطلب دادی چي پر دې درېدل
کېږي او نه درېدل اولیٰ دی.

(ک) دا د وقف قیل علیه علامه ده ددې مطلب دادی که د کاف علامه د
وقف وروسته وه، نو دی په حکم کي د وقف سو، او که دا کاف د علامې د
وصل وروسته وو، نو دی په حکم کي د وصل دی، کذلک دغه معني ده یعني
که دا کاف د درېدلو د علامې وروسته و، نو پر ده هم ودرېږه که د وصل کولو

د علامې وروسته وو نو پر ده هم وصل وكه.

(قف) دا علامه د "قد يوقف" د امر صيغه نه ده، دلته وقف وسي حرج خو نسته لكن وقف اختياري بهتر دى، خو شاه ولي الله الدهلوي رحمه الله ويلي دي چي دا علامه د قد يوقف عليه يعني دلته وقف كېداى سي، په هغه ځاى كي چي قاري ته وهم پيدا كېږي چي دلته به څوك وقف ونه كي نو ذي علامه دقف وليكي چي وقف وكه او وه درېږه.

(صل) دا د درېدلو علامه او دنه درېدلو علامه ده، پر دې نه درېدل اولى دي د درېدلو څخه درېدل او نه درېدل دواړه جائز دي.

(صلي) دا علامه د الوصل اولى ده يعني وقف خو هم جائز دى ليكن وصل بهتر اوښه دى.

(لا) دا د وقف قبيح علامه ده كه چيري بغير د گول آيت څخه راغلې وي، نو مه پر درېږه وقف ناجائز دى او كه چيري گول آيت راغلى وي نو وقف پر وكه مثلا ۝لا جائز دى.

(قلا) دا د وقف مختلف فيه علامه ده پر دې نه درېدل ښه دي، د چا په نېز چي د لته درېدل ښه دي د هغه په نيز به د ماقبل څخه اعاده نه كول، د مابعد څخه به شروع كوي د بعضو په نېز بالكل مه درېږه.

(قلي) دا علامه د الوقف الجائز مع كون الوصل اولى ده يعني وقف جائز دى لكن وصل بهتر دى.

(۝لا) دا د وقف جائز علامه ده، كه "لا" پر گول آيت راغله پر دې باندي درېږه د آيت په وجه وقف جائز دى، درېدلو وروسته د ماقبل څخه اعاده مه كوه.

(∴ ∴) دا د وقف معانقې علامه ده، مثال لَا رَيْبَ فِيهِ هُدًى لِلْمُتَّقِينَ، د وقف.

په حال کې د معانقې څلور حاله دي

(۱) اول حال دادي وصل اول فصل ثاني په لَا رَيْبَ فِيهِ باندي وقف وکه دواړه په يوه ساه سره ووايه.

هُدًى لِّلْمُتَّقِينَ په جلا ساه سره شروع که

(۲) دوهم حال دادی، فصل اول وصل ثاني په لَا رَيْبَ باندي وقف وکه فِيهِ د "هُدًى لِّلْمُتَّقِينَ" سره په يوه ساه وو يه دا دويم صورتونه جائز دي په اتفاق سره.

(۳) دريم حال دادی فصل کل په لَا رَيْبَ وقف وکه په فيه هُدًى لِّلْمُتَّقِينَ په جلا ساه سره شروع که، دا په اتفاق ناجائز دی.

(۴) څلورم حال دا د وصل کل په دواړو ځايو کي وصل وکې لَا رَيْبَ فِيهِ هُدًى لِّلْمُتَّقِينَ، په يوه ساه سره ووايه نه پر لَا رَيْبَ وقف کوي نه په "فِيهِ" وقف کوي نه پر هُدًى لِّلْمُتَّقِينَ تو له په يوه ساه سره يې ووايي هم ناجائز دی.

د شيخ القرآن حضرت قاري محمد عبدلمالک صاحب رحمه الله وايي صرف فصل کل ناجائز دی، وصل کل فصل اول وصل ثاني وصل اول فصل ثاني دا درې سره جائز دی.

(وقفه) دا د وقف علامه ده پر دې باندي وقف بهتر دی، د "وقفه" معنی لږ دربدل دا په هغه ځای کي کېږي چي "وقفه" ليکلې وي.

(وقفِ منزل) دې ته وقف جبرئيل هم وايي ددې وقف مطلب دادی چي د

قرآن کریم د نزول په وخت کي پر کوم ځای باندي چي حضرت جبرئیل علیه السلام وقف کړي وي هلته نبي ﷺ وقف کړی وي، دا وقف مستحب دی.

(وقف النبي ﷺ) دا وقف مستحب دی په داسي ځایو دربړه دا یولس ۱۱ ځایه ثابت دي.

(وقف غفران) پر داسي ځایو مه دربړه ولي دلته د وصل څخه وقف بهتر دی.

(وقف کفران) که دلته وقف وسي نو قباحت او بدي په معنی کي پیدا کېږي، په دې خاطر وقف نه کول بهتر دی.

## شعر

نظر کړه هغه ایاته

چي ئي لولي وایم تاته

که په آخر کښي دآیت

پیدا شي څه علامات

که په هلته هي وي مدوره

په سرخي کښي پر دره

د وقف دي محل دربړه

هغه آیات دي وړو هېږه

او که کښلي وي پر هغه آیت

بل رمز کړه احتیاط

آیات مذکوره د رمز تابع

دا کلیه قاعده سامع

قول دی دپاک حضرت

چي الحمدللحرمت

دی رمزیه آته حروف

چي وقف وصل پر موقوف

میم و طاء وصاد وقاف دی

جیم ولام و زاء و کاف دی

مجموعه دا کوه مسموعه

زجصک مطلق مجموعه

پر میم لاٌزم وقف دریږي

خوف دکفر مه تیریږي

پر ط مطلق و دریده دي

کله جائز تر تریده دي

پر (ج) جائز که تیریده کړه

بهتر دا چي دریده کړه

پر (ز) که وقف کړي بد توي

ولي بهتر تیریده وي

(ص) علامت د مرخص دی

د(ص) دغه حکم بس دی

مگرستړي شو قاري

که دمه کړي جواز لري

په قاف کښي قال قیل دی یاره

په وصل وقف کښي دیند اره

بعضي وقف کړي ځوک وصل

وصل غوره په دا فصل

(ک) کذلک رمز دی وروره

تر کاف پخوا آیات گوره

چي څه حکم پر هغه وي

هغه عین حکم پرده وي

ندی لازم وقف رمز د(لا)

وقف نه غواړي اصلا

که نفس تنگ شي لضروره

وقف کړي ته يې معذوره

سره لدې شرط پسر

دا وقف کړه وصل لسره

اعاده دوقف وکړه

موقوف علیه وصل ته کړه

او که بې رمزه بې آیاته

لا بل ځای در سي وتاته

که بې محل وقف وکړي

نوربه وائي هلته څه کړي

هغه محل د وقف نه وي

واي هلته حکم څه وي

جواب دا چه له ضروره

وقف کړي ته ئي معذوره

ددې هم اعاده وکړه

کړې وقف وصل ته کړه

قاري شپږ رمزلانور دي

ښه يې زده کړه په تا پور دي

وقف وصل وقلا وصلي دی

(س) ووقفة ښکاره کلي دي

زده یه کړه حکم عاقله

د هر رمز جدا قابله

پر قف کړه وقف نګاره

صل کړه وصل بې مداره

پر قف حکم لکه طا شي

صل په ضد دقف اداء شي

که بعضي نه کړي پر قلا

هرگز وقف اصلا

ولي قول غوره دادي

پر قلا وقف اولي دي

او پر صلی وصل دي غوره

تر وقف کړه صاحب هنره

د وقف هم شته پر جوازه

ولي دي وصل ممتازه

وقفه رمز دی استاد کړه

قدر یه زده په ښه استاد لره

تر وقف کم تر سکته زیات

هومري دره وایم وتاته

چي نژدې وقف ته روره

تر هغه وصل واوره گوره

(س)علامه دسکتې دله

په لږ سکته لږ دره عاقله

پر سکته هومري معطل وکړه

مایل وصل ته ځان ته کړه

پر سکته هومرې دره اصل

تر وقف شي مایل د وصل

# فصل

ټوله حروف نه ویشت (۲۹) دي، دې ته حروف هجا وایي او حروف مباني هم ورته وایي.

حروف جمع د حرف ده، حرف په لغت کي طرف او کنارې ته وایې، او په اصطلاح کي د حرف تعریف دادي " جُزءٌ مُعَین مِن اجزاء الحَلقِ وَاَللسانِ والشفتین"

ترجمه: یو معین او خاص جز دی د حلق یا ژبي یا شونډو د حصو څخه.

مخارج جمع د مخرج ده، مخرج په لغت کي "موضع الخروج" د وتلو ځای او په اصطلاح کي " وهو موضع خروج الحرف" یعني د حرفو د وتلو ځای.

په مخارجو کي اختلاف دی په اعتبار د مذاهبو په مذهب د امام خلیل رحمه الله دا اولس(۱۷) مخارج دي، په مذهب د امام سیبویه رحمه الله شپاړس

(۱٦) دي په مذهب د امام فراه رحمه الله څورلس(۱۴) دي.

د امام سیبویه رحمه الله جوف دهن مخرج نه بولي نو مخارج دده په نیز شپاړس( ۱٦ ) مخارج سوه.

امام فراه جوف دهن مخرج نه بولي "لام ،را، نون یو مخرج بولي، نو دده په نیز څورلس ۱۴ مخارج سوه، د امام خلیل رحمه الله جوف دهن جلا مخرج بولي لام جلا مخرج بولي نون جلا مخرج بولي را جلا مخرج بولي دده په نیز اولس (۱۷)مخارج سوه، د مخرجو پنځه ځایونه دي چي اصول ئي بولي.

(۱) جوف دهن د خولې خالي ځای ته وایي

(۲) حلق (۳)ژبه (۴) شوندان (۵)خیشوم،دا پنځه اصول مخارج دي په نیزد دقراؤرحمهم الله.

مخارج پر دوه قسمه دي (۱) محقق (۲) مقدر

**مخرج محقق** : پر درې قسمه دی (۱) حلق (۲) ژبه (۳) شوندان

**مخرج مقدر** : پر دوه قسمه دی (۱)جوف دهن (۲) خیشوم

د حروفو جلا والی بعض په مخرج سره راځي چي مخرج سره جلا دي او بعض په صفت سره راځي چي صفت یو دبل سره جلا وي، او په مخرج کي سره یو ځای وي، نو اوس صفت تخصیص پیدا سو.

# فصل

اوس بیان د مخارجو شروع کېږي، په مخارجو کي درې مذهبونه وه، چي مخکې بیان تېر سو، اول مذهب د امام خلیل رحمه الله دی چي دده په نیز اولس(۱۷) مخارج دي.

**اول مخرج :** جوف دهن يعني دخولې د ننه خالي ځاى دى، ددې ځخه دا حروف ادا کېږي، واو چي ساکن وي او دده پرمخکني حرف باندي پېښ وي، لکه "تَعْلَمُوْنَ" يا چي ساکنه وي او ددې پرمخکني حرف باندي زېر وي لکه "بَصِيْرٌ" الف چي هر کله ساکن وي او د هغه ځخه پر مخکني حرف باندي زور وي لکه "تُکَذِّبَانَ" دې درو حروفو ته مده وايي.

اوس د حلق پېژندن ضروري ده، حلق پر درې قسمه دى، اول اقصىٰ حلق، دوهم وسط حلق، درېيم ادنىٰ حلق، بيان د حلق به په دوهم مخرج درېيم مخرج او ځلورم مخرج کي درته راسي.

(۲) **دوهم مخرج** اقصىٰ حلق يعني د حلق هغه آخرنى حصه کوم چي د ځيگر وخواته ده ددې ځخه دا حروف ادا کېږي، "همزه" و"ها" ددې مخرج سره مشترک دى ددې جلا والى به په صفت سره کوو "همزه" جلا دى د "ها" ځخه په جهر او شدت کښې "ها" جلا ده د "همزه" ځخه په همس او رخوت کښې په باقي صفاتو کښي دا دواړه يودي باقي صفات دادي ، استفال ، انفتاح، اصمات

(۳)**درېيم مخرج :** وسط حلق يعني د حلق د منځ حصه ددې ځخه دا حروف ادا کېږي، عين او حاء، ددې مخرج سره مشترک دى ددې جلا والى په صفت کوو "عين" جلا دى د "حا" ځخه په جهر او توسط کښې، "حا" جلا ده د عين ځخه په همس او رخوت کښي په باقي صفاتو کښي دا دواړه يودي باقي صفات دادي" استفال ، انفتاح، اصمات.

(۴) **ځلورم مخرج** ادنىٰ حلق يعني د حلق هغه حصه کوم چي د خولې و طرف ته نژدې ده، د هغه ځخه دا حروف اداء کېږي، "غين" او "خا".

ددې مخرج سره مشترک دی ددې جلا والی په صفت سره کوه "غین" جلا دی د "خا" څخه په جهر کښې "خا" جلا ده د "غین" څخه په همس کښې.

په باقي صفاتو کښې دا دواړه یو دي باقي صفات دادي

رخوت، استعلاء، انفتاح، اصمات

او دې شپږو حروفو ته حلقي ویل کېږي.

او که د نون ساکن او تنوین وروسته راسي هلته اظهار کېږي.

نور حروف د ژبې سره کار لري لس(۱۰) مخارج او اتلس (۱۸) حروفه په ژبه کي راځي نو اوس د ژبې تقسیم ته ضرورت پیدا سو، ژبه په خپله پر پنځه قسمه ده.

(۱) دژبې اقصی یعني پای دژبې (۲) د ژبې شجر (۳) د ژبې حافه (۴) د ژبې طرف (۵) د ژبې سر.

(۵) **پنځم مخرج:** هر کله چي د ژبې بېخ د لوړ نالو سره ولګېږي د هغه ځای څخه لوی قاف ادا کېږي.

(٦) **شپږم مخرج:** د قاف و مخرج ته نژدې دخولې وخواته لږ کښته ددې ځای څخه کوچني "کاف" اداء کېږي.

ددې دواړو مخرج سره جلا دی ددې جلا والی ته ضرورت نسته دې دواړو مخرجو ته یعني د "کاف" او "قاف" چي پنځم او شپږم مخرج دی ته لهاتیه وایي.

لهات د غوښو هغه ټوټې ته ویل کېږي کوم چي د ژبې پای ته د حلق پر خنمبدو باندي لوړه زړېږي.

چي موږ او تاسي هلکی ژبه ورته وایو څرنګه چي دا دواړه حرفه ددغه حصې څخه اداء کېږي، ځکه خو دې ته حروفي لهاتیه ویل کېږي.

**اووم مخرج :** د ژبي منځ او د هغې مقابل پورته تالو دی، د هغه ځخه دا حروف اداکیږي. یا، جیم، شین، هغه یا چې مده نه وي یعني یاء متحرک. ددې حروفو مخرج سره مشترک دی، ددې جلا والی په صفت سره کوه "جیم" جلا دی د "شین" ځخه په "جیم" کښې جهر شدت قلقله ده.

شین جلا دی د جیم ځخه په شین کښې همس رخوت تفشي دی، په باقي صفاتو کښې درې سره مشترک دي هغه باقې صفات دادي

(۱) استفال ، انفتاح ، اصمات ، "جیم" جلا دی د یا ځخه په "جیم" کښې جهر دی "یا" جلا ده د "جیم" ځخه په "یا" کښې رخوت جهر دی "شین" جلا دی د "یا" ځخه په "شین" کښې تفشي دی "یا" جلا ده د "شین" ځخه په "یا" کښې لین دی دا درې حروفه "جیم" یا" غیر مده "شین" شجر فم د ژبي د مابین حصې ته ویل کیږي.

کله چې د لوړ تالو وطرف ته پورته شي ځرنګه چې دا درې حروفه د شجر فم ځخه اداء کیږي، ځکه نو دوئ ته حروف شجریه ویل کیږي.

# فصل

اوس نور حروف د غاښونو سره تعلق لري، نو د غاښونو پېژندني ته ضرورت پیدا سو، په غاښونو کي اختلاف دی.

د اکثرو خلګو دو دېرش (۳۲) غاښونه دي اوس به د دو دېرشو غاښو بیان وکړو.

ثنایا دا دمخ دوو لوړو غاښو ته ثنایا علیا وائي لاندي دوو غاښو ته ثنایا سفلی وائي، د هغه پر بغل باندي یو غاښ راسته طرفته او بل یو غاښ پر چپه طرف ته پورته علیا وائي ددغه مقابل لاندي ته سفلی وایي دې ته رباعیات یا

قواطع وايي قواطع معنی پرې کول.

بيا د رباعياتو پر بغل يو غاښ لوړ پر راسته طرف او بل لوړ پر چپه طرف دې ته علياء او بل د هغه مقابل لاندې ته سفلی وايي.

ددې نوم انياب يا کواثر يا نکدار دی، کواثر معنی ده ماتول نوکدار معنی ده تېره سرو والا.

بيا د انيابو پر بغل يو غاښ لوړ په راسته طرف ته او بل يو غاښ لوړ پر چپه طرف ته اولا ندې يو غاښ په راسته طرف ته او بل پر چپه طرف ته دې ته ضواحک وايي چې د کوچنی خندا او يا لږ خندا په حال کښې دا غاښونه معلومېږي، لوړو ته ضواحک عليا او لاندې ته ضواحک سفلی ويل کېږي.

بيا د ضواحکو پر بغل درې غاښونه لوړ په واسته طرف کې درې لوړ پر چپه طرف کې درې غاښونه لاندې پر راسته طرف او درې لاندې پر چپه طرف دې ته طواحن وايي، طواحن جمع د طحن ده طحن معنی د ژرندې "پل" ته وايي چې په دې باندې شی ميده کېږي، د انسان طحن دا دولس(۱۲) غاښونه دي بيا د طواحن پر بغل يو غاښ لوړ پر راسته طرف او بل لوړ پرچپه طرف لاندې يو غاښ په راسته طرف او لاندې پر چپه طرف دې ته نواجذ وائي نواجذ معنی پوره کېدلو ته ويل کېږي.

ضواحک، طواحن، نواجذ دې شلو غاښونو ته اضراس وايي، اضراس جمع دضرس ده معنی زامه په عربي کې ورته اضراس وايي او په پښتو کښې ورته زامې وايي.

ثنايا دي غاښ د وړاندي
دوه وړاس دوه دي لاندي
وړاس ته تول عليا ويل شي
همه لاندي سفلي بلل شي
پس هر يو يوله هر طرف
رباعي بولي معرف
وروپس څلور دندان
انياب بلل شي واوره جان
يويو پس له هر لوره
ضاحک بلل شي ياره گوره
ضاحک هغه دنداني دي
چي په ضحک خنده عيان دي
دري دري بيا له هر جانب
طواحن بولي اي طالب
طواحن وائي آسيانه
گوره څه وايم و تاته
دولس غاښ پده شملر دا شوه
د طواحن په نام دا شوه
څلور غاښه دي لاپاته
غوږ د زړه ونيسه وماته
نواجذ نومي نگاره
مخرج نه اخلي بيکاره

څو یه زده نشي دندان
مخرج به شي پر قاري گران

معرفت د مخرج یاره
شي ددې غاښو لواره

دېرش ودوه غاښه تمام شوه
بیان گوڼي نام په نام شوه،

**اتم مخرج :** د حرف ضاد دی او دا د ژبي دځنډي راسته یا چپه طرف ته اداء کېږي هر کله چي د "اضراس علیا" یعني د پورته زامو د غاښو بیخو سره و لگېږي او د چپه طرف څخه آسانه دی او د دواړو طرفو څخه یې په یوه وار اداء کول هم صحیح دی لکن ډېر مشکل دی او دې حرف ته حافه وایې د ژبي سر او بیخ به نه منبلوي.

دا حرف د نورو حروف څخه جلا دی په مخرج کي نو صفت کولو ته یې ضرورت نسته.

**نهم مخرج :** دلام دی هر کله چي د ژبي طرف سره د یو څه حصې دحافې چي د ثنایا رباعیات انیاب او ضاحکو د وریو سره و مبنلي د لوړ تالو سره ټکر وخوري که راسته طرف ته وي او که چپه طرف ته وي او د راسته طرف څخه آسانه دی، او ددواړو طرفو څخه په یو وار ایستل هم صحیح دی.

**لسم مخرج :** د نون دی او هغه هم د ژبي طرف دی لکن د لام د مخرج څخه کم یعني ضواحکو لره په نون کښې دخل نسته باقي غاښونه سره ثنایا رباعیات انیاب.

**یوولسم مخرج :** د را دی او هغه د نون د مخرج سره نژدې دی یعني بعینه

نون مخرج او فرق په مابين کښي د نون او را دادي چي په نون کي د ژبي شاه لره دخل نسته او په را کښي د ژبي شاه لره دخل سته.

دې درو حروفو ته لام نون را ته حروف طرفيه او ذلقيه وايي، ذلق د ذال او لام په زور سره د ژبي طرف کنارې ته ويل کېږي.

ددا درې حروفو مخرجونه سره جلا دي او د صفت ضرورت نه سو پيدا معني داده چي دا درې يو دبل سره جلا دي په مخرج کي.

**دولسم مخرج :** د طاء، دال، تا" دی او هغه د ژبي سره د ثنايا عليا بيخو ته ورکړي ددې څخه دا درې حروفه اداء کېږي، مخرج يې سره مشترک دی، جلا والی يې په صفت سره کوه دا درې سره سره مشترک دي، په شدت او اصمات کښي "طا و دال" مشترک دي په جهر کښي تا و دال مشترک دي په استفال او انفتاح کښي طاء جلا ده د تا و دال څخه په طاء کښي اطباق او استعلاء. د تا جلا ده د طا و دال څخه په تا کښي همس دی، او دې حروفو ته نطعيه وائي، نطع وائي هغه سوري ته چي د ثنايا عليا غابنو په مابين کښي يا د ثنايا عليا غابنو پيوست ته معنی جلا والی.

**ديارلسم مخرج :** د ظاء، ذال، ثا دی او هغه د ژبي سر هر کله چي د ثناياعليا د سرو سره يو ځای سي يعني لږ د ژبي سر راوځي ددې څخه دا حروف اداکېږي.

ددې حروفو مخرج سره مشترک دي ددې جلا والی به په صفت سره کوه، دا درې حروف سره مشترک دي په رخوت کښي، ظاء و ذال سره مشترک دي په جهر کښي ذال او ثا سره مشترک دي په استفال او انفتاح.

د ظا جلا کونکی صفت استعلاء او اطباق دی د ذال جلا کونکی صفت جهر

دی، او په ثاء کې جلاکوونکی صفت همس دی، په اصمات کښې توله سره مشترک دي

او دې درو حروفو ته حروف لثویه وایي ، د لام په زبر سره او دثا په زور سره وری ته وایي د قرب او نژدې والي له سببه یې دانوم ورباندي ایښی دی.

څورلسم مخرج د صاد ، زا سین دی، او دا د ژبې سره د ثنایا سفلي د غابنو د سرو سره د څه یو ځالي والي د ثنایاعلیا او ددې څخه دا حروف اداء کېږي، ددې حروفو مخرج سره مشترک دی ددې جلاوالی په صفت سره کوو.

دا درې حروف سره مشترک دي په رخوت اوصفیر کښې صاد اوسین سره مشترک دي په همس کښې زا اوسین سره مشترک دي په استفال او انفتاح کښې د صاد جلا کونکی صفت استعلاء او اطباق دی.

د زا جلا کونکی صفت جهر دی د سین جلا کونکی صفت همس دی په اصمات کښې توله مشترک دي.

او دې درو حروفو ته صفیریه ویل کېږي صفیر معني ده یو تېز آواز په مثل د شپېلکې.

پنځلسم مخرج : د فا دی دا د لاندي شونډي نس د ثنایاعلیا سرته ورکره ذلته فا اداکېږي، دا حرف د نورو حروفو څخه جلا دي په مخرج کې صفت کولو ته ضرورت نسته.

شپاړسم مخرج: د دوارو شونډانو څخه دا حروف اداء کېږي، با ،میم، واو، هغه واو چې مده نه وي یعني واو متحرک وي په دې درو حروفو کښې دا فرق دی چې با د شونډو دلانده ځایه څخه اداء کېږي، ددې سببه ورته بحري ویل کېږي، میم د شونډو د وچ ځایه څخه اداء کېږي، ددې سببه ورته بري ویل

کېږي، واو د دوارو شونډو د یوځای کېدو څخه اداء کېږي، نور فرق به په صفاتو سره کوي واو جلا سو د با ومیم څخه په واو کښي جلا کونکی صفات دادي.

رخوت او اصمات دی میم جلا سو د واو با څخه په میم کښي جلا کونکي صفات دادي، توسط او اذلاق با جلا سوه د واو ، میم څخه په با کښي جلاکونکي صفات دادي شدت وقلقله، په نورو صفاتو کښي سره مشترک دي هغه صفات دادي (۱) جهر، استفال ، انفتاح.

**اوولسم مخرج :** خیشوم یعني د پزي شپېلۍ ده او ددې څخه حرف غنه اداء کېږي.

**شعر**

اوس د مخر واړه بیان
په پښتو ژبه آسان
مخرج دی ځای دخروج
کوي حرف هلته عروج
هر یو حرف په خپل مقام
ادا والي که په فام کښي
یو کم دېرش حرفه جانان
تهجي زده کړه بي ارمان
په حدیث او په خبر
مخارج دي سبعة عشر
هم اولس ئي مخرج
ادا کېږي بي حرج

شفتي څلور دي شپږ حلقي
نور وسطي ګڼه باقي
اتفاق دی د قاریانو
داکثره واره راویانو
اول دحلق واوره بیان
په مدد دپاک سبحان
همزه ها په حلق کي کښته
عین و حائي دي له وسطه
غین وخاپه حلق کي پاس
ادا شي مکړه هواس
معلوم دري مخرجه داشوه
د دو دو جدا جدا شوه
حلق تېره شوه وسطي ګوره
ابتدائي داده وروه
قاف وکاف د کام پر ژب
ادا والي که صاحب
دژب بیخ مخرج دقاف دي
اندک لوړ مخرج دکاف دي
دغه ځان بولي لهات
اندک غواړي احتیاط.
لهاتي نوم دي وګوره
دهلکۍ ژبي وروره

بل حافه د ژبي دله
پر طواحين کښېږده بلبله
د طواحين پر حافه کښېږده
دضاد اطباق ادا کړه پرېږده
انياب عليا مخرج د لام دی
رباعي د نون مقام دی
دی مخرج د راء عيان
د رباعي ثناياميان
جيم وشين ويا جانان
ادا شي د کام له ميان
د کام منځ د ژب منځ
دی يه دا مخرج دا کنز
واو يا الف علت
په خپل جنس ئي حرکت
يا ودهن جوفيه راشي
په دغه مخرج اداء شي
د ژب سر ږده بي وسواس
پر ثنايا عليا د پاس
د ظا ذال دثا مخرج
دغه دی نشته حرج
دا مخرج د ذال وثا دي
په اطباق سره د ظا دي

دژبي سر ږده لکه مېخ
د ثنايا عليا پر بېخ
دا مخرج د دال وتا دی
په اطباق سره د طا دی
کښېږده ته سر دلسان
د ثنايا سفلي پر ميان
د صاد وسين و زا ځای
د عاصم په ګفت و راي
هم د صاد صفت اطباق دی
و اطباق وته مشتاق دی
په ظا وطا وهم په صاد کښي
څلورم زده کړه په ضاد کي
چي ئي کړې ته قراءة
د شونډو مه کړه اشارت
په اشارت به واو پيدا کړي
ډېر غلط به ګوره ادا کړي
اوس د شفت واوره بيان
د بمفوي دغه کان
دواړه شونډي کښېږده
ادا با وميم وکړه پرېږده
د ميم با مخرج دغه
نشته پرېږده دغدغه

مگر هو مري فرق لري

بابحري ده ميم بري

دوهم دي مخرج د واو

يو مخرج دی حرف ئي يو

كاواكي د شفت ياره

دي د واو مخرج ديندار ه

واو دغه مخرج لري

با د پر شونډو لره حاري

بل ږده ته سر د دندان

ددې كور شفت پر ميان

سر د ثنايا بطن وشفت

كښېږده ته په ښه الفت

د فا دا مخرج دي بس

د فا دا مخرج دی بس مخرج تمام كړه په هوس

# فصل

صفت په لغت كي : مَا قَامَ بِالشَّيِ مِنَ الْمَعَانِيْ

يعني صفت هغه شی دی چي قائم په بل چا وي د معانيو څخه لكه ، علم توروالي او نور داسي شيان وي.

صفت په اصطلاح كي هغه كيفيت دي چی د حروفو حالت ښكاره كوي، يعني د حروفو لوړ والی كښته والی، قوي والی او ضعيف والی سخت والی

او نرم والي او داسي نور.

صفات پر دوه قسمه دي ، اول صفات لازمه، دوهم صفات عارضه.

اول صفت لازمه دا هغه صفات دي چي دحروفو د ادا کېدو دپاره همېشه ضروري وي که چيرې دا صفتونه ادانه کړل سي، نو حرف مکمله نه ادا کيږي، مثلاً په (ص) کي صفت اطباق که چيري ادا نه کړل سي نو دا (س) جوړيږي داسي صفت ته ذاتيه لازمه مميزه او مقومه ويل کېږي.

دوهم صفت عارضه دا هغه صفتونه دي چي ددوئ د نه ادا کېدو په سبب حرف خو هغسي پاته سي لکن د هغه ښائست او زينت به پاته نه سي مثلا پر (را) باندي زور يا پېښ وي نو هغه ډک ويل پکار ده، لکن دا باريکه ويل، د الله د لام څخه چي مخ کي زور يا پېښ وي نو هغه لام ډک او په تفخيم سره ويل په کار دي.

لکن يا باريکه ووايي داسي صفتونه ته محسنه، محليه عارضه او مزينه ويل کېږي.

د صفات لازمه و په تعداد کي اختلاف دي، لکن په هغو کي مشهوره صفتونه اولس دي، دا مذهب د علامه جزري رحمه الله او د هغه د تابعدارانو دی يا صفات لازمه په خپل ذات کي پر دوه قسمه دي.

اول صفات لازمه متضاده يعني يو تر بل سره ضد دي هغه لس[۱] صفات دي.

دوهم صفات لازمه غير متضاده دي يعني يو تربل سره ضد نه دي هغه اوه (۷) صفات دي.

د صفات لازمه متضاده وو اجمالا مجموعه داده.

(۱)همس (۲)جهر(۳)شدت (۴)رخوت (۵) استعلاء (٦)استفال (۷)اطباق (۸) انفتاح (۹) اذلاق (۱۰) اصمات.

دصفات لازمه غير متضاده اجمالا مجموعه داده

(۱)قلقله (۲)تكرار (۳) صفير (۴) تفشي (۵) استطالت (٦)انحراف (۷) لين.

# فصل

## تفصيل د صفات لازمه تضاده
## چي لس (۱۰) دی هغه دادي.

**اول** صفت همس دی د هغه حروف دادي: (۱) حاء (۲) فا(۳)ثا(۴)ها(۵)خا(٦)صاد (۷)سين (۸)كاف (۹)تا (۱۰)شين.

ددې حروفو مجموعه داده "فَحَثَّهُ شَخصٌ سَكَتَ" ددې ضد جهر دی.

**دوهم** صفت جهر دی ددغه صفت حروف نونلس دي (۱)همزه (۲) الف (۳) با (۴) جيم (۵)دال (٦) ذال (۷) را (۸) زا(۹)ضاد (۱۰)طا (۱۱) ظا (۱۲) عين (۱۳) غين (۱۴) قاف (۱۵) ميم (۱٦) نون (۱۷)واو (۱۸) لام (۱۹) يا ددې حروف مجموعه داده "ظِلُّ قَوٍّ رَبِضٍ اِذْ غَزَا جُنْدٌ مُطِيْعٌ"

**دريم** صفت شدت دی ددغه حروف اته دي (۱) همزه (۲) جيم(۳) دال (۴)قاف (۵) طاء (٦) با (۷) كاف (۸) تا ددې حروفو مجموعه داده "اَجِدُقَطٍ بَكَتْ".

ددې ضد رخوت او توسط دی د توسط حروف پنځه دي

(۱)لام (۲) نون (۳) عين (۴) ميم (۵) را ددې حروفو مجموعه داده "لِـن

عُمَرَ".

توسط جلا صفت نه دی دا په مابین کي د شدت او رخوت دی.

**ځلورم** صفت رخوت دی ددغه حروف شپاړس (١٦) دي (١) الف (٢) ثا (٣) حا (۴) خا (۵) ذال (٦) زا (٧) شین (٨) سین (٩) صاد (١٠) ضاد (١١) ظا (١٢) غین (١٣) فا (١۴) ها (١۵) واو (١٦) یا ددې حروفو مجموعه داده "خَذْ غَثٌ حَظِ فَضٍّ شَوْصِ زَيٍّ سَاهٍ"

**پنځم** صفت استعلاء دی ددغه حروف اوه (٧) دي (١) خا (٢) صاد (٣) ضاد (۴) غین (۵) طا (٦) قاف (٧) طا ددې حروفو مجموعه داده "خُصْ ضَغْطِ قِضْ" ددې ضد استفال دی

**شپږم** صفت استفال دي ددغه حروف دوه ویشت (٢٢) دي.

(١) همزه (٢) الف (٣) با (۴) تا (۵) ثا (٦) جیم (٧) حا (٨) دال (٩) ذال (١٠) را (١١) زا (١٢) سین (١٣) شین (١۴) عین (١۵) فا (١٦) کاف (١٧) لام (١٨) میم (١٩) نون (٢٠) ها (٢١ واو (٢٢) یا.

ددې حروفو مجموعه داده "ثَبَتَ عِزُّ مَنْ يُجَوِّدُ حَرْفَهُ اِذْ سَلَّ شَكًا"

**اووم** صفت اطباق دی، ددغه حروف څلور دي (١) صاد (٢) ضاد (٣) طا (۴) ظا، ددې حروفو مجموعه داده "صَضْ طَظْ" ددې ضد انفتاح دی.

**اتم** صفت انفتاح دی ددغه حروف پنځویشت (٢۵) دي.

(١) الف (٢) با (٣) تا (۴) ثا (۵) جیم (٦) حا (٧) خا (٨) دال (٩) ذال (١٠) را (١١) زا (١٢) سین (١٣) شین (١۴) عین (١۵) غین (١٦) فا (١٧) قاف (١٨) کاف (١٩) لام (٢٠) میم (٢١) نون (٢٢) واو (٢٣) ها (٢۴) یا (٢۵) همزه.

ددې حروفو مجموعه داده "مَنْ اَخَذَ وَجَدَ سَعَةَ فَزَكَّاحَقٌ لَهُ شُرْبُ غَيْثٌ"

**نهم** صفت: اذلاق دی ددغه حروف شپږ دي (۱) فا (۲) را (۳) میم (۴) نون (۵) لام (٦) با ددې حروفو مجموعه داده "فَرَّ مِنْ لُبَّ" ددې ضد اصمات دی.

**لسم** صفت اصمات دی ددغه حروف درویشت (۲۳) دي

(۱) همزه (۲) الف (۳) تا (۴) ثا (۵) جیم (٦) حا (۷) خا (۸) دال (۹) ذال (۱۰) زا (۱۱) سین (۱۲) شین (۱۳) صاد (۱۴) ضاد (۱۵) طا (۱٦) ظا (۱۷) عین (۱۸) غین (۱۹) قاف (۲۰) کاف (۲۱) ها (۲۲) واو (۲۳) یا.

ددې حروفو مجموعه "جُزْ غَشٌ سَاخِطٍ صِدْثِقَةَ اِذْ وَعَظَهُ يَحُضُّكَ"

**اوس بیان دصفات لازمه غیر متضاده کیږي.**

صفات لازمه غیر متضاده اوه (۷) دي هغه دغه دي

**اول** : د صفات لازمه غیر متضاده و څخه قلقله ده ددې حروف پنځه دي "(۱) قاف (۲) طا (۳) جیم (۴) دال (۵) با ددې حروفو مجموعه داده "قُطْبُ جَدٍ" ددې ضد نسته

**دوهم** د صفات لازمه غیر متضاده وو څخه تکریر دی، دا صفت صرف په راکي راځي ددې صفت ضد نسته.

**دریم** د صفات لازمه غیر متضاده وو څخه صفیر دی ددغه حروف درې دي (۱) صاد (۲) زا (۳) سین ددې ضد نسته.

د صفیر معني ده یو تېز آواز د شپېلکې په شان.

**څلورم** صفت د صفات لازمه غیر متضاده وو څخه تفشي دی ددغه حرف یو دی، صرف په شین کي ددې ضد نسته.

**پنځم** د صفات لازمه غیر متضاده و څخه استطالت دی ددغه حرف صرف
یو دی. په ضاد کي دی ددې ضد نسته
**شپږم** د صفات لازمه غیر متضاده و څخه انحراف دی ددغه دوه حرف
دي(۱)لام (۲) را ددې ضد نسته
**اوم** دصفات لازمه غیر متضاده و څخه لین دی ددغه دوه حرفه دي، واو
ساکن چي ماقبل یې زور لري لکه خَوْفَ دې ته واو لین وائي او یاء ساکن چي
ماقبل ئي زور لري لکه "صَیْفَ" دې ته یاء لین وائي ددې ضد هم نسته.
**پوښتنه**: په کومو حروفو کي چي دا صفت نه وي په هغه حروفو کي به
خامخا د دوئ ضد او مقابل موجود وي، د مثال په طور چي په ضاد کي
استطالت دی نو په نورو حروفو کي چي استطالت نه وي هغه او ضاد خو سره
ضد او مقابل دی نو کوم وخت چي دوه ضده سره یوځای سي نو بیاد متضاده
او غیر متضاده څه فرق سته؟.
**جواب**: دا خبره خو تر یو حد سمه ده، صفات متضاده هغه صفاتو ته ویل
کېږي، چي مقابل کي دده د ضد نوم وي او هلته څه ناڅه صدق سي، خو دلته
د استطالت د ضد نوم بالکل نسته او دا نه ویل کېږي، چي فلانی حرف یو
صفت لري چي ده استطالت ضد دی نو لهذا دغه صفت ته متضاده نه ویل
کېږي، او هر څه متضاده صفات چي دي هغه خپل ضد لري او ویل کېږي،
لکه شدت چي ضد یې رخوة دی او نور مثالونه چي تېر سول.

**شعر**

دحرفو زده کړه صفت

تانه نه بوي غفلت

د هر حرف صفت جلا دی

په جدا صفت دادي

د صفاتو حال معلوم کړه

له استاذه ئي مفهوم کړه

دمهموسه ضد مهجوره دی

د رخوة ضد شديده دی

دشديده رخوة له ميان

لن عمر زده کړه له مانه

د مستفل ضد مستعليه دی

د مد ضد يې مقصوره دی

د منفتح ضد مطبقه دی

د مصمته ضد مذلقه دی

لام شي انحراف را مکرر

شين ئي تفشي لوست دلبر

مکرر نه هر گوره

چي ربړده ژبه له گوره

ژبه مکړه لز ريده ته

لوله را په اندازه ته

صفير زا او سين صاد کړه

دقطب جد قلقله ياد کړه
ضاد طويل لري صفت
زده ئي کړه په مشقت
صفات زده کړه پر استاد
نو به هلته شي ستا ياد
هم ته ور باندي پوه شي
خلاص به ته لدي اندوه شي
مجملا مي څو ابياته
د صفاتو راوړه تاته
هغه څوک چي فهميده وي
له استاذه ئي څه زده دي
هم هغه به په پوهيږي
نوربه هسي تر تيريږي.
که په تفصيل مي کړای بيان
نور به وای قاري حريان
مبتدي چي سرگردان شي
تلاوت ورته ډېر گران شي
ماله دې جهته ياره
تفصيل دار نکړه نگاره
ماکړه ته په دعا ياد
خدای پوره لري ستا مراد

حروف که چيري په صفات لازمه وو کښي مشترک وي نو په مخرج سره يو

د بل څخه جلا وي او که چیري په مخرج کښي یو او متحد وي نو په صفات لازمه سره جلا وي په کومو حروفو کښي چي جلا والی د مخرج دی، د هغوئ د بیانولو ضرورت نسته.

د هغه حروفو د بیانولو ضرورت سته کوم چي متحد في المخرج وي یعني مخرجونه یې سره یو وي.

# فصل د را بیان

دولسو ځایه را د که ویل کېږي

(۱) اول ځای را مفتوحه غیر مشدده مثال "رَحِيْمٍ".

(۲) دوهم ځای را مضمومه غیر مشدده مثال "رُبَمَا".

(۳) دریم ځای را مفتوحه مشدده مثال "اَلرَّحْمٰنِ"

(۴) څلورم ځای را مضمومه مشدده مثال "مَرُّوْا"

(۵) پنځم ځای را ساکن ماقبل مفتوح مثال "اَرْسَلَ".

(٦) شپږم ځای را ساکن ماقبل مضموم مثال "يُرْزَقُوْنَ".

(۷) اووم ځای را ساکن ماقبل کسره عارضي مثال "اِرْجِعْ"

(۸) اتم ځای را ساکن ماقبل کسره چي په دویمه کي وي مثال "رَبِّ ارْجِعُوْنَ"

(۹) نهم ځای را ساکن ماقبل کسره مابعد حرف مستعلیه وي مثال "قِرْطَاسٍ"

(۱۰) لسم ځای را ساکن ماقبل ساکن ماقبل مفتوح یعني د دریم حرف د را ماقبل څخه مثال "قَدْرٌ" په حال کي د وقف.

(۱۱) یوولسم ځای را ساکن ماقبل ساکن ماقبل مضموم یعني دریم حرف د را ماقبل څخه مثال "بِكُمُ الْعُسْرَ" په حال کي دوقف.

(۱۲) دولسم ځای را مضمومه چي د روم سره وقف کوي مثال "مُنْتَصِرٌ".

را اوه ځایه باریکه ویل کېږي.

(١) اول ځای رامکسوره غیر مشدده مثال "رِجَالٌ"

(٢) دوهم ځای رامکسوره مشدده مثال "اَلرِّجَالُ"

(٣) دریم ځای را ساکنه مخته که زیر وو نو دا باریکه ویل په کار ده لیکن د باریک ویلو درې شرطونه دي.

(١) اول شرط کسره به اصلي وي دوهم شرط دا کسره اورا به په یوه کلمه کښې وي دریم شرط د را وروسته به په هغه کلمه کې حروفو مستعلیه څخه حرف نه وي.

را ساکنه به صرف په هغه صورت کې باریکه وایو کله چې دا درې شرطونه موجود وي، لکه "شِرْعَةً فِرْعَوْنَ" څرنګه چې د "اِرْجِعُوْنَ او اِرْجِعْ" را د که ویل کېږي، ولي چې په دې کې صرف دوه شرطه یعني دوهم او دریم شرطونه سته او اول شرط نسته، او د اَلَّذِيْ، اِرْتَضٰى، رَبِّ ارْجِعُوْنَ دا را هم د که ویل کېږي، ددې وجهې څخه په دې کې اول شرط او دریم شرط موجود دی لیکن دویم شرط پکښې نسته د دا کلمو را هم د که ویل کېږي په دې کې اول دوهم شرط خو موجود دی لکن دریم شرط نسته.

هغه کلمې دادي

(١) قِرْطَاسٌ (٧) سپاره سورة انعام اوله رکوع

(٢) وَاِرْصَادٌ (١١) سپاره سورة توبه (١٣) رکوع

(٣) فِرْقَةٌ (١١) سیپاره سوره توبه (١٥) رکوع

(٤) مِرْصَادًا (٣٠) سپاره سورة نباء اوله رکوع

(٥) لَبِالْمِرْصَادِ (٣٠) سپاره سورة الفجر اوله رکوع.

داسي مثالونه په قرآن کريم کي داغه پنځه دي.

(٣) را ساکنه وروسته به حرف مستعليه په داغي کلمې کي نه وي مثلا "
شِرْعَةً ،غيره.

(۴) را ساکن ماقبل ساکن ما قبل کسره يعني د را ماقبل دريم حرف باندي کسره وي. مثلا "حِجْرِ" په حال کي د وقف.

(۵) را ساکن ماقبل ياء ساکنه وي مثال "خَيْرٌ" د وقف په حالت کي.

(٦) را د اماله په وخت کي بِسْمِ اللهِ مَجْرِيٰهَا اصل کي مَجْرَاهَا وو په الف سره بيا اماله په کښي وسوه.

اماله معني کږوالی او اماله پر دوه قسمه ده.

**اوله اماله کبری** : ده يعني زور د زېر طرف ته او الف د ياء طرف ته مائل کړي او وې وايي چي تلفظ يي د يايي مجهول رنګه وکړل سي چي په فارسي کي آمدې په پښتو کي راغلې تلفظ دی دې ته اماله محضه او اضجاع ويل کېږي، په ټوله قرآن کريم کي د حضرت حفص رحمه الله په روايت کي صرف په يوه ځای کښي اماله ده.

مَجْرَهَا (١٢) سپاره کي سورة هود (۴) رکوع کي اماله ده، د يا معروف رنګه تلفظ کولو ته اماله نه ويل کېږي، لکه مِصْرِيٌّ، قِطْرِيٌّ نو مَجْرِيهَا د يا رنګه تلفظ کول غلط دی.

**دوهم اماله صغري** : زور او الف د زير او يا و طرف ته دارنګه مائل کول چي په هغه د انخفاض په نسبت انفتاح غالبه وي دې ته اماله صغری تقليل اوبين اللفظين ويل کېږي.

(٧) را مکسوره وقف بالروم چي کوي مثال "وَالْفَجْرِ".

**فائده** : په سورة شعراء کي په لفظ "فِرْقٍ" کي اختلاف دی، د ډک ويلو او د باريک ويلو، ډک يې په دې وجه وايم چي وروسته حرف مستعليه دی، باريک يې

په دې وجه وایم چې پر قاف باندي کسره ده، د کسرې په وجه د قاف تفخیم ضعیف سو نو راء باریکه وایم.

## شعر

لري رې دوه حاله نګاره
دی تفخیم وترقیق دلداره
تفخیم پورته وایي لاله
ترقیق باریک مشي بدحاله
د حرکت ته ئي نظر کړه
که زبر پیښ و تفخیم ورکړه
یا په زور پیښ له وړاندي وروستو
وې ترلي را په لوستو
په تفخیم لوله را مذکوره
اي قاري په عقل پوره
په پُرِي يه کړه اداء ته
ترقیق مه لوله را دالته
لکه رب رزقوا وي یا قربان
یا رحمن کړه یا رحیم وي یا ریحان
بله را ده منفصله
په زیر تفخیم سته شي دله
هم په حرکت عارضي جان
تفخیم لوله را ای ځوان

عارض نه دي معتبر

اصلي زور وکړ باور

د منفصل عارض مثال

گوره دی شاهد حال

ان ارتبتم ام ارتابوا وي

من ارتضي بل ارجعوا وي

ځکه اخلي تفخيم وروره

ته په اصل ورته گوره

بلکه زېر وو تر راء وړاندي

را ساکنه جزم باندي

که تر را وروسته شي پيدا

دا اوه حرف استعلاء

خا و قاف وغين وصاد

طا و ظا و را وضاد

که له دې حرفو يو پيدا شي

راء په تفخيم سره اداء شي

که برابر شي په يوه کلمه دواړه

را ومستعليه شي تفخيم غواړه

چي دوئ يو ځای شي برابر

تفخيم اخلي کړه باور

لکه مرصاد يا قرطاس

ارصاد فرته په دغه قياس

که په فرق کښي اختلاف
د روې قاريان سره خلاف
څوک تفخيم که څوک ترقيق
پر دا ځاى که ډېر تحقيق
د تفخيم سبب معلوم شي
د ترقيق جهت وايه تر کوم شي
وړاندي وروسته تر را زېر
دی کسري تر را چاپېر
هم په دغه سبب خلاف که
اختلاف په ښه انصاف که
تفخيم په راء کښي دي اولي
تر ترقيق تفخيم اولي
او که کلمه د راجلا وي
په ثاني کښي استعلا وي
نه ئي حکم دغه جان
د تفخيم دی واوره مانه
را مذکوره که باريک
تاته وايم بيداري که
لکه فاصبر صبرا جميلا شه
انظر قومک په دا تمثيل شه
که باقي نو روي دغه قياس کړه
رفع دفع بل وسواس کړه

د تفخيم راء حال مي بيان کړه
کم وبېش مي څه عيان کړه
د ترقيق حال دی لاپاته
وايم څه ګوره و تاته
دويم حال د ترقيق دی
وکړه ښه فهم تحقيق دی
که حرکت وي زېر دري
باريک لوسته شي هوري
يا وي زير راء د وړاندي
راء ساکنه جزم باندي
دغه هم لوله باريکه
قاعده هسي رنګ جاريکه
لکه رواج وي يا رجال
دمکسور رې مثال
تنظر که مِريةٍ دی
دا مثال د راء ساکن دی
بلکه پر راوي وقف باندي
وي ياساکنه تر را دوړاندي
که يو زبر وو يا دوه پېښنه
يا يو پېښ وو نيک انديشه
دغه را مذکوره ګوره
مرقق يې لوله وروره

د وقفې را الوله باریک

سبب ئي شوی هوښیا ریک

یا له دوه کسر وو جان

جوړه شوی واوره بیان

ګویا تر را وړاندي زیر شه

ظاهر اعراب په بل پېر شه

لکه خبیر وي یا بصیر

بل هم طېرک یا قدیر

بلکه پر روي وقف باندي

صحیح ساکن وي تر دې وړاندي

که پخوا تر را ساکن وو

تر اسکان په خوا د زبر وپېښ مکان وو

تر سکون پخوا که فتحه و ضم وي

ده را حکم مفخم وي

په پوري سره ئي لوله

ده مخرج صفت په تله

دا رې تابع ده د ماقبل

تر ماقبل ده ماقبل

چي حرکت ئي پخه شان وي

پُر باریک تابع د آن وي

لکه شهر وي یا قدر

لکه فجر وي یا بدر

که پخوا تر رمز بوري کسره

بائيده دي چه ترقيق لري سره

باريک لوله وقفي رې

په تحقيق سره هورې

شعر وسحر وايه مثال

په صورت مشي ملال

د وقفې راء ساکن حال

سره يو دي يو يې حال

مگر يه وو دوه په زوره

د را مذکوري برابره.

را پخپل حرکت لوله

تفخيم ورکړه له بدله

د دو زورو تنوين دله

په الف شي بدل هرکله

يو وايه شي يو بدل

فهميده شي په مثل

سعيراً کړه سعيرا

قديراً کړه قديرا

شکر تمام شوئي دی حال

د تفخيم ترقيق احوال

آمين ثم آمين

# فصل

## د نون ساكن او تنوين بيان

په نون مشدد كي غنه كول يعني پزي ته آواز داخلول ضروري دى دغنې مقدار يو الف دى او د الف د مقدار معلومولو آسانه طريقه داده چي خلاصي گوتي بندي كړي يا بندي گوتي خلاصي كړي.

د نون ساكن او تنوين په احكامو كي درې مذهبه دي

(۱) اول مذهب د علامه جعبري رحمه الله په نېز درې حكمونه دي

(۱) اظهار (۲) ادغام (۳) اخفاء مع القلب و بلاقلب

دوهم مذهب دبعض قراء په نېز د نون ساكن او تنوين پنځه احكامه دي،

(۱) اظهار (۲) اقلاب (۳) اخفاء (۴) ادغام مع الغنه (۵) ادغام بلاغنه.

دوئ دا دوه قسمونه جلا جلا شمېرلي دي، او پينځه حكمونه يې بللي دي.

درې يم مذهب د علامه شاطبي رحمه الله علامه جزري رحمه الله او اكثره امامانو او قراؤ دى، دنون ساكن او تنوين څلور حكمونه بيان كړي دي.

(۱) اظهار (۲) ادغام مع الغنه و بلاغنه (۳) اقلاب (۴) اخفاء.

**اظهار**: لغوي معنى ده ښكاره كول او په اصطلاحي معنى د حرف د خپل مخرج معين ځخه سره د ټولو صفاتو بغير له څه تغير اوتبدله اداء كول، دنون ساكن او تنوين وروسته حروف حلقي همزه، ها، عين، حا، غين، خا څخه يو حرف كه راسي نو دلته اظهار حلقي كېږي.

يعني نون ساكن او تنوين د خپله مخرجه څخه بېله غنې او د څه تغېر او تبدله ادا كول دې ته اظهار حلقي ويل كېږي.

په يوه كلمه كي د نون ساكن او حروف حلقي مثالونه

(۱) يَنْئَوْنَ (۲) يَنْهَوْنَ (۳) وَتَنْحِتُوْنَ (۴) وَالْمُنْخَنِقَةُ (۵) اَنْعَمْتَ (٦) فَسَيُنْغِضُوْنَ.

په دوو کلمو کي د نون ساکن او حروف حلقي مثالونه

(۱) مَنْ آمَنَ (۲) مَنْ هَاجَرَ (۳) مِنْ حَكِيْمٍ (۴) مَنْ خَلَقَ (۵) مَنْ عَمِلَ (٦) مِنْ غِلٍّ.

د تنوين وروسته د حروف حلقي مثالونه.

(۱) كُلٌّ آمَنَ (۲) جُرُفٍ هَارٍ (۳) عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ (۴) يَوْمَئِذٍ خَاشِعَةٌ (۵) حَقِيْقٌ عَلٰى (٦) مَلٰئِكَةٌ غِلَاظٌ.

د ادغام لغوي معني ده يو شي، په بل شي کي داخلول او په اصطلاح کي هر حرف ساکن چي په مثل يا متجانس يا متقارب کي مدغم کولو ته وايي چي يو حرف مشدد جوړ کړل سي، د نون ساکن او تنوين وروسته چي (ي) (ر) (م) (ل) (و) (ن) مجموعه يې داده يَرْمَلُوْنَ.

که چيري ددې څخه يو حرف راسي نو هلته ادغام کېږي، يعني نون ساکن او تنوين په لام او را سره بدل کي دارنګه سره يوځاى کي چي دواړه يو حرف مشدد جوړ سي او په يوه تلفظ سره بېله غنې ادا کړه سي لکه "مِنْ لَّدُنْهُ، هُدًي لِّلنَّاسِ، مِنْ رَّبِّهِمْ" حِسَابًا رَّبِّ السَّمٰوٰتِ دي ته ادغام تام ويل کېږي.

او نور پاته څلور حروفه (ي، و، ن، م) مجموعه يې داده يُـوْمِنُ کي د ټولو قراوو په نيز ادغا ناقص مع الغنه کول کېږي، لکه "مِنْ وَّلِيٍّ وَّ لَانَصِيْرٍ، مَنْ يَّقُوْلُ، عَذَابٌ يُّخْزِيْهِ" اَنْ يَّقُوْلَ، عَامِلَةٌ نَّاصِبَةٌ، وَ اَكُنْ مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ، اَوْ دَمًا مَّسْفُوْحًا.

**فائده** : په دُنْيَا، قِنْوَانٌ، بُنْيَانٌ، صِنْوَانٌ کي ادغام نه کېږي، د ادغام دا شرط دی چي د نون ساکن وروسته په حروف (يَرْمَلُوْنَ) په دوو کلمو کښي وي څرنګه چي دا په دوو کلمو کښي نه دی بلکي په يوه کلمه کښي دی له دې سببه ادغام نه کېږي، بلکه اظهار کېږي. اقلاب لغوي معنی ده يو شي په بل شي سره بدلول

او په اصطلاح کي نون ساکن او تنوين په ميم سره بدلول، که چيري د نون ساکن يا تنوين وروسته با راسي نو هلته اقلاب کيږي، يعني نون ساکن او تنوين په ميم سره بدليږي، اقلاب مع الغنه کول کيږي، لکه" مِنْ م بَعْدِ، سَمِيْعٌ م بَصِيْرٌ، لَيُنْبَذَنَّ.

د نون ساکن وروسته باء په يوه کلمه کي هم را تلا سي او په دو کلمو کي هم لکه "اَم ۢبِئْهُمْ، اَنْ م بُوْرِكَ ، د تنوين وروسته حرف باء په دوو کلمو کي راځي لکه رَسُوْلٌ م بِمَا لَاتَهْوٰي، خَبِيْرٌم بِمَاتَعْلَمُوْنَ.

د اخفاء لغوي معنى ده په مابين کي د ادغام د اظهار يع... حرف ساکن ادا کول دي په داسي حال کي چي خالي د تشديد څخه او په اول ... ف کي په غنه باقي وي، يعني اول حرف نون ساکن یاتنوين دی او د اخفاء حـ... ف پنځلس دي هغه دغه دي (۱) تا (۲) ثا (۳) جيم (۴) دال (۵) ذال (۶) زا (۷) سين (۸) صاد (۹) ضاد (۱۰) طا (۱۱) ظا (۱۲) کاف (۱۳) قاف (۱۴) فا (۱۵) شين.

د نون ساکن او تنو... وروسته څخه يو حرف راسي نو هلته اخفا... غني کيږي دي ... و نور داسي د اخفاء د ادا سولو طريقه هغه دا چي نون ساکن او تنوين د خپل مخرج څخه جلا کړي او آواز يې په خيشوم کي پټ کړي، بيله تشديده راسي ادا سي چي نه اظهار وي او نه ادغام وي.

**شعر**

اوس يې حکم ياد کړه ياره

هم عمل کړه پر هوشياره

د نونين څلور حال

په تحقيق بې قيل وقال

قلب اخفا اظهار ادغام کړه
ادا هر يو په خپل مقام کړه
بيا هله چي تهجي راشي
تر نونين وروسته پيدا شي
اول حال ئي قلب دی گوره
قلب بدل ته وائي وروره
که يا وروسته له نونين
راشي پس له ساکنين
نون مذکور بدل په ميم کړه
قلب غنه سره دوئ ميم کړه
نونين قلب مغ الغنه شي
چي د با راتله بهانه شي
مثال يي، "اَنۢبِئۡ" کړه جان
بل مِنۢ بَعۡدِ واوره خان
سَمِيۡعٌۢ بَصِيۡرٌ تنوين دی
د جزآءًۢ بِمَا مثال مبين دی
يو حالت تمام شه لاړه
باقي دري حاله ولاړه
دوم حال يي د ادغام دی
زده کړه ورته ناکام دی
له نونين پس چي راشي
يَرۡمَلُوۡنَ حروف پيدا شي

لام و را و یاو واوشه

چې میم نون کړي لرمن یوشه

که په دوو کلمو کښې

وي نونین پرملون ایښی

له مذکو حروفو هر یو

ادغام اخلي په خپل رو

له را ولام غنه نه وي

په یمنو کښې غنه بوي

ته په لر کښې غنه مه کړه

یمنو ادغام مع الغنه کړه

هم تسهیل شي هم زینت

هم لازم يې قرآئت

د غنې مثال دی دا

غنه ادغام کړه اتصال

من یقول من ولد شي

هم من نور من مسد شي

بل لینه ولا مثال کړه

هم وحي یوحي سانبال کړه

که عذاب بس مقیم وي

یا تر جنات وروسته نعیم وي

بل د ادغام بې غنې حال

د لام را دادی مثال

كن له هدي للمتقين ياره
عزيز رحيم من رب شماره
كه په يوه كلمه راشي
يمنو نونين سره پيدا شي
اظهار كوه پر پرده ادغام
كړي ادغام ثقل تمام
په قرآن كښي څلور ځاى
واقع شوى اظهار وايه
يو دنيا شه بل صنوان دى
بل بنيان هم قنوان دى
باقي لوله په ادغام ته
په بيان شوى رنګ اقسام ته
اووه حروف دوه حالت
شوه پوره ماضي شمارت
دريم حال د اظهار
ياد يې كړه چي دي په كار
كه دا شپږ حرفه حلقي
شي لنونين ملاقي
هغه حرفونه همزه ها دي
عين وحا او غين و خا دي
مجموعه هغ عع اخ دى
كه يه زده كړي تاته رخ دى

که حلقي وروسته لنونین

واقع شي تر ساکنین

نون ساکن تنوین اظهار کړه

په ثابت لوست اختیار کړه

اظهار مه کړه هسي رنګ

په نري آواز په رنګ

نونین پرېکړي لوله پس

نونین حلقي په یوه نفس

دي انعمت یا من غیر

وانحر دی یا من خبیر

بل مثال یې دتنوین دی

دا ښکاره مثال مبین دی

ته عذاب الیم در یاد کړه

په فضل عظیم زړه شاد کړه

قلیلة غلبت کښې

کلمة هو درنسه

خوښ په علیم خبیر مثال شه

هم په غفور حلیم خوشحال شه

د اظهار حالت تمام شو

په ابیاتو کښې انجام شو

د یارلس حرف شوه پوره

درې حالته ورسره

دريږ ودیارلس سره لاړه

او پنځلس دي ولاړه

څلورم مال یه زده کړه دا

نونین کړه په اخفا ادا

که پنځلس حرفه درشي وروره

تر نونین و وروسته گوره

نونین اخفا مع الغنه کړه

قلب اظهار ادغام دمه کړه

هغه حرفونه تړله دادي

چي په اخفاء سره ادا دي

تا ثا جیم دال دی

زا وسین وشین و ذال دی

صاد وضاد و طا و ظا دی

فا و قاف کاف تړله دادي

مجموعه تثج دزد شص

نور ضطظ سقفک دی بس

لکه انت من ثقل من جاء

من دخل تنظر ان شاء

انزل من سکن ینشرون

من صبر من ضعف ینطقون

من ظلم فانفجر منقلبون

یومئال باقي پاته منکرون

بل مي د تنوين راوړو مثال

ته تمام کړه د اخفا مذکور احوال

زکوة، تريدون صبرا جميلا

عمدا دون بل ته ظلا ظليلا.

خيرا ثوابا دي نفسا ذکيا

ماتا سنين وابه جبارا شقيا

نکاحا فليس عليم قدير

عزيز کريم کړه پاته نو تقرير

د نونين حالت شو تم

نشو زيات بيان نه کم آمين

# فصل دميم مشدد او ساکن بيان

په ميم مشدد کي غنه کول يعني پزي ته آواز داخلول ضروري دی، دغني مقدار يو الف دی د ميم ساکن دري حاله دي.

(۱)ادغام (۲) اخفاء (۳) اظهار.

لغوي او اصطلاحي معنی د هر يوه مخ ته تيره سوه، هلته يې وګورئ د نون په بيان کي.

(۱) ادغام دميم ساکن وروسته چي بل ميم راسي نو هلته ادغام مع الغنه کيږي، او دې ته ادغام شفوي ويل کيږي، لکه "وَلَكُمْ مَّا كَسَبْتُمْ، فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ،اَمْ مَّنْ او نور داسي مثالونه.

(۲)اخفاء د ميم ساکن وروسته چي حرف باء راسي نو هلته اخفاء سره د غنه کيږي، يعني د ميم د اداکيدو په وخت کي د شوندو هغه وچه حصه په داسي

نرمي سره يوځای کي چي ددې ضعيف اعتماد په سبب ميم کمزوره سي او د
هغه يو څه حصه غائبه قسم سي.

(۱) صفت د غنې په قدر د يوه الف د خيشوم څخه اداسي د اخفاء څخه دلته
داغه مراد دي په دې کي اخفاء اولی او اظهار جائز دی، په دې شرط چي ميم
اصلي وي يعني د نون يا تنوين څخه بدل سوی نه وي، دې ته اخفاء شفوي
ويل کېږي.

مثلا وَمَاهُمْ بِمُؤْمِنِيْنَ ،اِلَيْكُمْ بِالْوَعِيْدِ.

(۳) اظهار د ميم ساکن وروسته که چيري د ميم او با څخه علاوه بل څه
حرف راسي نو هلته اظهار کول کېږي، يعني ميم به د هغه د مخرجه څخه بېله
غنې په کامل سکون سره وايي.

لکه مَعَكُمْ اِنَّمَا،وَلَهُمْ عَذَابٌ، وَ يَمُدُّهُمْ فِيْ طُغْيَانِهِمْ، كُنْتُمْ فِيْ ضَلٰلٍ او نور داسي
مثالونه.

دميم ساکن وروسته حرف اظهار په يوه کلمه کي هم راتلای سي او په دوو
کلمو کښي هم راتلای سي.

لکه اَنْعَمْتَ، تُمْسُوْنَ، لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ، عَلَيْهِمْ قَامُوْا او نور داسي مثالونه والله اعلم
(احقر عبدالواحد صابري).

**شعر**

ساکن ميم حال يې څلور

ته يې زده کړه پر تا پور

پس له دې چي تهجي راشي

دوه کم ديرش حرف نما شي

څلور نوعي کړه ميم ادا

## اظهار ادغام تحريک اخفاء

ميم ساکن هلته اخفاء شي
چې يې با وخواته راشي
بولي دا اخفاء اولي
بعضې کاندي اظهار لا
د اخفاء قول بهتر دی
وائي عاصم كه ستا باوري دی
يو مثال ترميم کړه بحجا
بل مثال به کم به کړه ته اداء
دميم اخفا تېر شو و احوال
دويم کړه د ادغام حال
د ساکن ميم وکړه ادغام
په تحريک ميم کي په آرام
ميم اول کړه ثاني ميم
غنه ادغام کړه نشته بيم
مثال يې اطعمهم من جوع
عليهم مؤصدة لره مسموع
دريم حال ئي د تحريک دی
فهم تېز غواړي باريک دی
چه الف د وصل راشي چرته
تر ساکن ميم وروستو نماشي
ميم ساکن متحرک شي

دالف حركت ورکــ شي
مثال يې كَمْ اَللهُ وو كُمُ الله شي
ميم ساكن تحريک ادا . شي
كَمِ اَلْمَوْتُ وو كَمُ الْموْتُ شه
حركت ميم يو . لف فوت شه
څلورم ځايه له اظهاره
خبره شه واوره نگاره
كه باقي حرفونه راشي
تر ساكن ميم ورستو نماشي
ميم ساكن لوله اظهار
د عاصم دغه گفتار
خصوصا چې وَرْف درشي
په راتله د وَرْ فِ كي اظهار ترشي
مثال يې عليهم ولاالضالين دى
يا بهم المؤمنين دى
مثال يې عليهم في تضلل كړه
دا مثال پر تول دليل كړه
دغه نور مثال يې د پر دى
قاريان ځكه ځني سير دي
ولي زي له حرص
څو مثال وايم كس
ميم ساكن چي لوست اظهار شي

هغه ځای قاري بيدار شي

هغه مثال دادي عزيزه

فهم وکړه نيک تميزه

ء انذرتهم ام لم تنذرهم

يالهم ام لم تستغفرلهم

ولاخمسة وي که تمشون

ام نحن انتم تخنقون

انکم غير مدينين وي

او که ان کنتم صادقين وي

او د عاصم د راويانو

قول راوړ ما يارانو

ځني قاريانو که اختلاف

لدې قول انحراف

پر نون اظهار پر ميم ادغام

ميم اخفاء که پر باقي حرف تمام

نعمان صاحب نيولی

د عاصم قول پسندلي

مذهب زموږ دی امام

بس زړه په کړو مدام

آمين ثم آمين

# فصل

## د ادغام په بیان کي

د ادغام لغوي معنی او اصطلاحي معنی ادغام په لغت کي یوشی په بل شي کي پټول او په اصطلاح کي د تجوید ویل کیږي یو ساکن حرف په بل متحرک حرف کي داسي یو ځای کول چي دواړه یو حرف مشدد په یوه تلفظ سره اداسي.

او دوهم حرف په کوم کي چي اول حرف پټیږي هغه ته مدغم فیه ویل کیږي، مثلا په "مِنۡ رَّبِهِمۡ" کي د نون ادغام په راء کي سوی دی نون ته مدغم او راء ته مدغم فیه ویل کیږي.

حرف مدغم په اعتبار د ادغام دري قسمه دی، (۱) اول ادغام متماثلین (۲) دوهم ادغام متجانسین (۳) دریم ادغام متقاربین.

(۱) اول ادغام متماثلین دې ته وایي که چیري دوه حرفه ذاتًا مخرجًا او صفةً سره یو وي، او ادغام وکړل سي نو دې ته ادغام مثلین ویل کیږي.

لکه "فَاضرِبۡ بِّهِ . اِذۡهَبۡ بِّکِتَابِيۡ.

(۲) دوهم ادغام متجانسین دې ته وایي که چیري دوه حرفه مخرجا سره یو وي نه ذاتًا او ادغام وکړل سي نو دې ته ادغام متجانسین ویل کیږي "مثلا لکه "اِذۡ ظَّلَمُوۡا ،قَالَتۡ طَّائِفَةٌ،قَدۡ تَّبَیَّنَ.

(۳) دریم ادغام متقاربین دې ته وایي که چیري دوه حرفه متقاربین یعني قریب المخرجه یا قریب الصفة کي ادغام وکړل سي نو دې ته ادغام متقاربین ویل کیږي مثال " لکه "اَلَمۡ نَخۡلُقۡکُّمۡ".

نو په کلام عرب کي ددې تلفظ ثقیل او دروند بلل کیږي د ادغام د سببه دا

ثقالت ليري کېږي، او په کلام کي د تخفيف په وجه سره ددوئ اداء کول آسانه کېږي.

# فصل

د مدغم د سکون أو حرکت او د مخرج په اعتبار سره ادغام پر دوه قسمه دی،

(اول) ادغام صغير (صغير ځکه ورته وايي چي اول کار سوی دی صرف ادغام غواړي نو کار يې لږ دی ځکه ورته ادغام صغير وايي.

(دوهم) ادغام کبير دی.

ادغام صغير: هغه ته ويل کېږي، چي مدغم حرف يعني اول حرف ساکن وي دمخه تر ادغام دا درې قسمه لري (۱) واجب (۲) ممتنع (۳) جائز.

(۱) **اول** ادغام واجب هلته بلل کېږي، چي اول حرف ساکن وي د مثلين او متجانسين څخه دوهم متحرک وي مثال "اَنِ اضْرِبْ بِعَصَاكَ الْحَجَرَ".

اِذْهَبْ، قَدْ دَخَلُوْ دا مثالونه د ادغام مثلين صغير دي.

(۲) **دوهم** ادغام ممتنع دادی چي اول مثلين به حرف مد نه وي لکه "اٰمَنُوْا وَعَمِلُوْا، اَلَّذِيْ يُوَسْوِسُ.

ځکه که دلته ادغام وسي نو مد به دمابينه ولاړ سي، دغه قسم ته تمکين ويل کېږي، د تمکين معنی داده چي قاريان به خامخا د دوو واوانو او يا دوو ياگانو په مابين يو لږ غوندي مد وکي په مقدار د مد طبعي د پاره ددې چي ادغام رانه سي او يا يو واو او يا يوه ياء پاته سي.

(۳) **دريم** ادغام جائز دادي چي دوه حروفونه د متقاربينو سره يوځای راسي اول حرف يې ساکن وي مثال "اَلَمْ نَخْلُقْكُمْ" کي ادغام تام اولی دي، داسي ادغام

به مخ ته درته راسي.

او ادغام ناقص جائز دي، د ادغام ناقص په صورت کي دغتې قاف د ادا کولو په وخت کي په کوچني کاف کي داسي مدغم کړي چي صفت د استعلاء په غتې قاف کښي پاته سي، او د اداء کولو په وخت کي نه قلقله وي او سکته وي نو دې ته ادغام جائز وايي.

**دوهم اغام کبیر:** هغه ته ویل کېږي که چیري مدغم حرف د مخه تر ادغام متحرک وو او ساکن کړل سو وروسته بیا ادغام وکړل سو نو دې ته ادغام کبیر ویل کېږي.

**فائده:** د ادغام کبیر دپاره شرط دادی چي اول به یو وار اول ساکنوې بیا به یې دوم حرف کي مدغمه وې، نو ځرنگه چي دلته کار ډېر غواړي نو وړته ادغام کبیر وایي.

مثال د ادغام کبیر دپاره لکه " لَاتَاْمَنَّا اصل ئي "لَاتَاْمَنُنَا" و اول نو ن یې ساکن کړی په دوهم نون کې مدغم کړی نو اول نون مدغم دی دوهم نون مدغم فیه دی نو "لَاتَاْمَنَّا"جوړ سو دادغام سره اشمام ضروري دی د ادغام مع الاشمام ادا کولو طریقه داده چي د میم د اداء کولو وروسته متصلا د نون تلفظ شروع کولو سره غنه هم جاري کړل سي او شونډي گول جوړي کړل سي او د "نا" د تلفظ مخکي شونډي خلاصي سي.

# فصل

د حرف مدغم په اعتبار سره دا د ادغام متجانسین او ادغام متقاربین هر یو پر دوه قسمه دي.

اول ادغام متجانسین تام، دوهم ادغام متجانسین ناقص.

اول ادغام متقاربین تام: دوهم ادغام متقاربین ناقص.

ادغام متقاربین تام که چیري د حروف متجانسین اول حرف په دوهم سره بدل کړي ذاتاً او صفتاً نو دې ته ادغام متجانسین تام ویل کیږي لکه " وَ قَالَتْ طَائِفَةٌ" کي تا په ظا سره بدله سوه اوطا په طا کي مدغمه سول څو دا اول حرف چي تا ده هیڅ صفت يې پاته نه سو نو دې ته ادغام متجانسین تام ویل کیږي.

دوهم د ادغام متجانسین ناقص بیان، که چیري د حروف متجانسین اول حرف په دوهم کي داسي مدغم کړي چي د اول حرف یو صفت پاته سي نو هغه ته ادغام متجانسین ناقص وايي، لکه "لَئِنْ م بَسَطْتَ اَحَطْتُ" چي طاء صفت د اطباق پاته دی اول د ادغام متقاربین تام بیان که چیري د حروف متقاربین اول حرف په مدغم فیه کي ذاتاًاوصفتاً بدل کي نو هغه ته ادغام متقاربین تام ویل کیږي، لکه " "اَلَمْ نَخْلُقْكُمْ" کي لوی قاف په کوچني کاف سره بدل سو نو بیا کاف په کاف کښي مدغم سو، دوهم د ادغام متقاربین ناقص بیان که چیري د حروف متقاربین اول حرف په دوهم کي داسي مدغم کړي چي د اول حرف یو صفت پاته سو، هغه ته ادغام متقاربین ناقص ویل کیږي، لکه ""اَلَمْ نَخْلُقْكُمْ" کله چي د قاف صفت استعلاء پاته سي.

**شعر**

که دوه حرفه سره ورشي

جنس ئي يو وي برابر شي

اول ساکن تحریک پس

وکړه ادغام په ښه هوس

چي اول له جنسه دثاني شي

ادغام اداء په آساني سي

لکه یوجهه لک وي
کم من ملک بل لک وي
یضرب بعصا قد دخلوا وي
ربحت تجارة یجعل له وي
مثلي ادغام په دې دليل کړه
هم پاته نور لدي قبیل کړه
ادغام مه کړه دا دوه ځایه
مد فوتېږي اظهار وایه
هغه ځاي چي مدَ ورکېږي
ادغام کله روا کېږي
قالوا هم که في یومین وي
مد قدر دالف دین وي
بل آمنوا و عملوا کي
په في یوسف او په قالوا کي
ادغام پرېږده کړه اظهار ته
مد فوتېږي يې ناچار ته
او که بماعصوو کانو وي
یالکه او وو نصروا وي
هسي ځاي کړه ادغام وروره
مد يې نشته لین دي گوره
دمذکوره مدفوتېده نشته
ادغام لازم د اظهار څه شته

چي متفق باندي جمهور دي
څو ادغام چي مشهور دي

متفق ادغام دی دا
زده کړه ټول جدا جدا

لکه ادغام د دال په تا کښي
د طا په تا تا په طاء کښي

دلام په را د ذال په ثا کښي د ثا په ذال د ذال په ظا کښي
د تا په دال د قاف په کاف کښي د با په میم د کاف په قاف کښي

لکه اذ ظلموا وي له بسطت
الم نخلقکم وي که حسدت

قالت طائفة که وجدتم
قل ربي که فرشته

د طاء وقاف صفت پر ځای کړه
لتا کاف سري یوځای کړه

سره د قاف طا له صفت
ادغام وکړه نیک خصلت

بل اجیبت دعوت ادغام کړه
په دا مثال ټوله انجام کړه

آمین ثم آمین

# تمت بالخیر

د دلیل القرآن تجوید الفرقان د شروع کولو نېټه

۲۰۰۸-۴-۱۰

د دلیل القرآن تجوید الفرقان د ختمېدو نېټه

۲۰۰۹-۷-۱۰

وَلِلّٰهِ الْحَمْدُ وَلَهُ الْمِنَّةُ وَاِلَيْهِ الْاِسْتِكَانَةُ وَاِلَيْهِ الْمَصِيْرُ وَمِنَّاالدُّعَاءَ وَمِنْهُ الْاِجَابَةُ وَهُوَ عَلٰی كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ،وَبِالْاِجَابَةِجَدِيْرٌ،يَسْئَالُ اللّٰهُ تَعَالي اَنْ يُوَفِّقَنَا لِاَحَبِّ الْاَعْمَالِ اِلَيْهِ وَ لِاَنْفَعَ الْعُلُوْمِ لَدَيْهِ فَاِنَّهُ مَالِكُ ذٰلِكَ وَالْقَادِرُ عَلَيْهِ

وصلي الله تعالی علی خیرخلقه و نور عرشه سیدناو حبیبنا ومحبوبنا محمدوعلی آله و اصحابه في كل نفس مائة الف مرة من یوم خلقت الدنیا ثم تبقی ببقائك یا الله

اللهم اغفر لمؤلفه ولكاتبه ولمن سعي فیه

ثم آمین ثم آمین

کمپوزر: مولوي قاري علي احمد مینگل

۰۳۰۱۳۷۶۲۸۰۹

# فهرست مضامين دليل القرآن تجويد الفرقان

## ((اعلان))

محترمو مسلمانانو

پر دین مینو مسلمانانو ته خبرور کول کېږي

چی نوی تجویدپه نامه(دالنورالقرآن تجوید الفرقان)

چاپیږي دغه تجویدمشتمل دی

په قواعد و د تجوید کي چی ډیرمفیددی

((الحمدالله))

په خپله مورنی پښتوسلیسله اوآ سانه ژبه

ادبی کندهاری پښتو

انشاء الله ژربه چاپ سی